


# اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۳ لمریز کال
د حمل لومړی ګڼه

د تاسیس کال ۱۳۳۹



د کندهار مجلې چې د ښاغلي محمد داؤد د حکومت په دوره کې
په خپرو نو پیل وکړ اوس دد غه ملي رهبر په پیغام
خپل څوارلسم نشراتي کال شروع کوي




مسئول مدير : کريم (طالب)
مهتمم : رحمت الله (مړوند)
اداره: د شهيدانو واټ

د۱۳۵۴ کال د[illegible]ي مياشت


# د کندهار مجله

# څورلس کلنه سوه

د کندهار مجله ددې کال له نوي کيدو سره څورلس کلنه شوه دا نو د۱۳۳۹ کال د پسرلي لومړۍ مياشت ده چې د کندهار مجلې د هيواد په مطبوعاتي افق کې طلوع وکړه.

دا چې دی موقری مجلې د خپل مطبوعاتي خدمت په دوران کې څرنګه فرهنګي خدمت کړی دی البته دا د لوستونکو قضاوت ته محول خبره ده خو دا حقيقت بايد

له ياده و نه ايستل شي چې د ذهني تنوير په لاره کې ددې مجلې خپرولې بې اغيزې نه دي پاتې سوې.

په دغو ورځو کې چې د کندهار مجله منځ ته راتله

زموږ د جمهوري دولت اوسني رئيس او ملي پيشوا ښاغلي محمد داؤد د افغانستان د صدارت عهده پر غاړه درلوده او د هيواد د فرهنګ په اوچتيدو کې لويې

هڅې دوالې وې.

د هيواد دملي رهبر د دغو هڅو په لمانځنه ددغې مجلې د لومړۍ ګڼې پر پښتۍ د ښاغلي محمد داؤد عکس

چاپ سوی دی چې په کندهار کې يوه عمراني پروژه ګوري.

د کندهار مطبوعات چې د خپلوا کې دا خيستلو څخه وروسته په منظم ډول فعاليت لري طلوع افغان يې يوه ورځپاڼه ده او يو وخت د دغه اخبار په څنګ کې د پښتو

په نامه يوه مجله و د سره چاپيده له خوکله چې د کندهار ادبي انجمن د پښتو ټولنې سره په کابل کې يو ځای سو نو څخه مجله هم له منځه ولاړه څو مخه وړچې څو کاله وروسته

د څڅی مجلې پر ځای د کندهار د غه مجله منځ ته راغله چې دا دی اوس يې د تاسيس څورلسمه کاليزه پر ځای کوو.

د کندهار مجله چې د کندهار په مطبوعاتو کې منځ ته راتلو [illegible] ليکوالو او روښنفکرانو يوه ارزووه [illegible] او ددغې ارزو د پهسر

رسيدو په لار کې د هغه وخت د مطبوعاتو د مدير ښاغلي ولي ژلمي هڅې د قدر وړ دي او د يادونې ضروري ګڼو چې ددغې په زړه پوري مجلې د مؤسس په حيث د هغه ياد

په درناوي وکړو.

د څورلسو کالو په دوران کې د کندهار مجلې په کافي اندازه علمي مواد لوستونکو ته وړاندې کړي دي.

د تېرو لسو کالو په دوران کې چې زموږ پر مطبوعاتو بوتوړ پلو غوړېدلي ؤ څو د اخبره د هېر يدو نه ده چې په دغو ورځو کې هم د کندهار مجلې په شهامت سره

هغه علمي او تحقيقي مواد وړاندې کړي دي چې هغه زموږ د علمي ټنډي له پاره ددوا حيثيت درلودی.

دا چې اوس زموږ پر ټولنه د جمهوريت نظام حاکميت

لري او ددغه نظام په بر کت مو د هيواد ګوټ ګوټ روښانه سوی دی نو په دغه دوره کې د مطبوعاتو وظيفه هم تر هر وخت درنه سوې ده.

مطبوعات د جمهوريت په حاضره دوره کې د يوې سالمې تبليغي وسيلې په حيث بايد عامه اذهان تنوير کړي او دا کار يو رسالت دی چې د نوي ملي نظام له خوا

د مطبوعاتو پر غاړه ايښودل سوی دی.

دا حقيقت د مطبوعاتو او د مطبوعاتيانو په نزد څر ګوښانه دی چې زموږ ملي فرهنګ د حاضر ملي نظام

«پاته د پښتۍ په ۳ مخ کې»

# د نوي کال په مناسبت د دولت د رئيس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد پيغام

ګرانو خويندو او ورورو!

د افغانستان د جمهوريت د لومړني نوي پسرلي او د نوي کال لومړني ورځ د مملکت په هر کوټ او ګوټ کي په هره سيمه کي چي ياست تاسو خويندو او ورونو ته د ځان او خپلو ملګرو د خوا د زړه له کومي مبارکي وايم او ملي ګټو هدفونو ته د رسيدو د پاره چي زموږ د وطن سرلوړي او د خلکو نيکمرغي تضمين او تأمينوي د لوی خدای (ج) څخه د ملت افرادو او د جمهوري دولت کارکوونکو ته بريالي توب غواړم.

هغه کال چي تير سو يو تاريخي کال ؤ چي زموږ لرغوني خاوره د خپلو زرګونو کلونو تاريخ په اوږدو کي په کراتو د هغه شاهده وه.

د تير کال د سرطان په ۲۶ نيټه زموږ تاريخي ستر انقلاب چي يوازي د افغانستان د ملت د ارادي څخه يې سرچينه نيولې وه. د وطن د فدا کارو اردو د همت په طاقت او سرباز ي منځ ته راغی او د خلکو د ټولو طبقو په تيره بيا د منورو او وطن پالو ځلميانو د خوا د زړه له کومي احساساتو او ملاتړ له دا سي ترد هر کلي سره مخامخ شو چي په خپل ذات کي زموږ د هيواد په تاريخ کي بي ساري ؤ او خاطره به يې د افغان د هر وګړي د پاره د وياړ څخه ډکه او نه هيريدونکي پاتي وي.

د دغه ملي انقلاب په رڼا کي په هيواد کي د جمهوريت مترقي نظام ټينګ شو او د دغه نوي نظام په رڼا کي تر کومه ځايه چي په څو نيږدو مياشتو کي يې امکان درلود د يوي خوا يې د ډول ډول او پيچلو پيچلو مشکلاتو د حل په لار کي چي د پخواني رژيم څخه د يادګار په ډول پاتي وه نسبتاً ګټور ګامونه واخيستل شول او د بلي خوا د يوه نوي افغانستان د آبادولو په غرض چي وکړ اي سي خپل ملي حيثيت چي د هغه سره ځايي وساتي په همدغو څو محدودو مياشتو کي د ټولني په اقتصادي، اجتماعي او سياسي ژوندانه کي بولي دا سي تحولات شروع شوه چي البته د ګرانو وطنوالو په بيساري ملاتړ سره به دوام وکي.

مهم سوال دا دی چي يو ملت د نړۍ په دا سنيو شرايطو او زموږ د عصر سره موافق څرنګه کولای شي په شرافتمندانه ډول ژوندو کي او عالي هدف ته د رسيدو د پاره کومې وظيفې او مکلفيتونه سرته ورسوي.

طبعاً د دغه شو کرلاي د دغه مهم سوال ته په ځوانيدو ګړچو کي په تفصيل جواب ووايو. خو يقين دي د ملي شعور، د ملي ګټو او څه تحليل او تشخيص په ارلود عمل او نظر د يووالي په تامين او تر ټولو مهم په بي خلله او دوام داره قاطع تصميم سره يو ملت کولای شي په پای کي څه عالي هدف ته ورسوي او بايي څه نا څه نږدي کي.

زه د تاريخ د تر خو تجربو څخه هيله لرم د افغانستان د ملت قاطع تصميم هم دا دي.

د هغه ملت د پاره چي نوي يې د تکامل په لار کي ګام ايښی دی او لا هم په مخ کي ستر مشکلات او مسئوليتونه لري مقصد ته د رسيدو لمړی شرط د ځان د نقصانونو او کمزوريو درک او تشخيص او وروسته بيا د نقايصو د بشپړيدو او د هغو ضعيفو ټکو د اصلاح د پاره هڅه او کوښښ دی.

هغه ملت چي ونه غواړي او يا ونه کړای شي خپلي نيمګړتياوي درک او يا د درک کولو په صورت کي په پوره ايمانداري او قوي عزم د هغو په اصلاح کي کوښښ ونه کي هر هغه کوښښ و تلاښ چي خپل مطلب کمال ته د رسيدو د پاره يې کوي ځايي بي ثمره وي.

نو له دې امله زموږ څخه هر یو په هر ځای هره وظیفه او هر مقام کې چې یو باید د هر شي د مخه د ته میې انه ولرو چې د خپل شخصي او ملي نقایصو د درك کولو په لټه کې سو. او د زړه له کومې د هغو په اصلاح پیل وکو په دغه صورت کې کولای سو د خدای (ج) په لطف ځانونه او سو چې ډیر ژر به خپلو عالي هدفو ته ورسیږو.

ګرانو وطنوالو!

لکه څنګه چې زموږ د جمهوري نظام ټینګښت د وطن د بوی ولي د مینې او او فدا کارو غوښتو د فداکارۍ محصول دی د دغه نظام وده او تکامل نه یوازې د دوی فداکارۍ او زیار ایستل بلکه د افغان د هر فرد زیار ایستل او فداکارۍ غواړي چې هیله لرم د مملکت د اجتماعي او د اساسي ګټو په رعایت کولو زموږ ټولنه د مقصد پر لور ته وړ دي کي.

کله چې د هیواد ګټې او د خلکو ګټې منځ ته را ځي ستر او مهم مسئولیت ټولو هغو افرادو ته متوجه کیږي چې د هغو مخه هر یو په خپل وار د خپل توان په اندازه او د خپل اجتماعي مقام په تناسب باید د مملکت د ګټو په رعایت کې کوښښ وکي او د خپلې ټولنې ګټې وساتي تر څو چې د دغې لارې مو خپلو خلکو او مملکت ته ښه خدمت کړی وي.

په ځینو موارد و کې امکان لري چې ملي ګټې د شخصي ګټو سره ټکر وکي او دغه وخت دی چې واقعي وطن پالنکی شخص د فداکارۍ څخه کار اخلي او د عامه مصلحت او ګټو د پاره خپلو شخصي او خصوصي ګټو ته نه ګوري.

تاریخ ښیي هغو ملتونو چې عزم یې کړی دی په ځان باندې متکي وي خپلې منابع په کار واچوي او ځانته یو ملي ژوند جوړ کړي او په دغه لار کې د هیڅ ډول کوښښ څخه ځان و نه ژغوري حتماً بریالي شوي دي.

ولې د افغانستان ملت د دغو ملتونو پیروي و نه کي.

ولې دس چې زموږ په ژوندانه کې نوی فصل پرانستل شوی دی د نورو ملتونو په شان په یوه نه خلل موندونکي تصمیم سره چې زموږ په شان او زموږ سره یې یو ځای شروع کړې ده د ترقي په لور پر مخ لاړ نه شو.

په ځای ده چې د پسرلي په دغه فصل کې د ټولنې د غه متګاد او د نجیبو بزګرانو او کروندګرو څخه چې هم د مملکت د اقتصادي بنسټ په ټینګښت او پرمختګ کې ستر نقش لري او هم د مملکت د هر ګوټ سمسورتیا د دوی د نه ستړي کیدونکو هڅو او خوارو تو بو لو مرهون ده په حق شناسۍ سره یادونه وکو. او د ټولنې د غو ګټورو او مهمو غړو سره د وجود اهمیت څه او زیات درك کړو په تیره بیا زموږ د هیواد د دا افسوس اکثریت چې تر اوسه پورې په حقیقت کې یو زراعتي هیواد دی همدغه زیار ایستونکې طبقې تشکیلوي. نو له دې امله جمهوري دولت لکه څنګه چې څو کرته یې ویلي دي د افغانستان د خلکو اکثریت ته خدمت چې دغه زیار ایستونکې طبقه د دغه مهم جزء ګڼل کیږي خپله یوه مهمه وظیفه ګڼي.

امیدلرو د بزګرو د اجتماعي او حیاتي حالت د ښه کیدو په لاره کې د دولت دوامداره کوښښونه نتیجې ته ورسیږي. او د دوی په ژوندانه کې یو مثبت او سالم تحول منځ ته راسي.

تر څو چې د وطن د دغو حقیقي خادمانو حق پیژندنه په رښتیا سره د ټولنې د خوا تحقق مومي. د افغانستان زاړه

زموږ وطن او جمهوري نوی نظام زموږ ټولو څخه انتظار لري په هم هغه اندازه چې زموږ راتلونکي وظیفې او مسئولیتونه سخت او درانه دي په هم هغه تناسب باید زموږ کوښښونه زیات زموږ عزم بې خلله او زموږ همت پیاوړی وي.

هیر نه کړي هغه څه چې زموږ تیرو سو کسانو سرته رسولي دي او نن موږ د هغه قضاوت کوو هغه څه چې نن یې موږ سرته رسوو سبا به د تاریخ او د راتلونکو نسلونو د قضاوت وړ وګرځي.

خدای (ج) دې و نه کړي چې د خدای په حضور او د تاریخ د قضاوت په مخ کې شرمنده او سرټیټي اوسو.

په پای کې یو ځل بیا نوی کال تاسو ټولو او ټولو هغو ښځو او پلو ورو ته چې په خپل ملي پیکار بوخت دي او د نړۍ ټولو خلکو ته د زړه له کومې مبارکي وایم.

هیله لرم دغه نوی کال د نړۍ د ټولو خلکو د پاره د سولې او نیکمرغۍ کال وي.

سرلوړی دې وي افغانستان

تل دې وي جمهوریت

د م - ابراهیم (عطائی)
لیکنه او څېړنه

# د قدیمي نړۍ په فولکلور کې د هومیریک اثارو ارزښت

د ولسونو په ادبیاتو کې خورا ښه ادبیات هغه دي چې د هغو تعلیق ښځې له د ولس له خوا شوی وي، یعنې خپله د قوله ولس د فکر او ژبې محصول وي.

د غه محصول نه یوازې هغه فولکلوریک ادبیات دي چې هغه په ولس کې په کوم ځانګړي شخص اړه نه لري بلکه یوازې ټول ولس په دسته جمعي ډول د هغه هنري اثرونو پیدا کوونکي او مالک وي.

په هغه فولکلوریک ادبیاتو کې چې شفاهي رنګ ولري د سادګۍ او د جامعیت یا اجتماعیت د فلسفې په رنګ کې ډېرې داسې ښکلاوې پرتې وي چې د مشخصو هنرمندانو اثار له هغه تر ډېره ځایه برخه نه لري.

دغه شفاهي اثار چې د بشري فولکلور غوره ذخایر تشکیلوي د هغه توم ور کې هنرمند د ذهن او ادبي ژبې محصول وي چې د اجتماعیت د حاکمیت په برکت د انفرادیت تر سیطرې لاندې لا نه وي راغلي.

د بشر قدیمي فولکلوري ادبیاتو خورا غني دي او د اجتماعي ځېړنو د علماوو ډېر تازه ابتکارو چې د دوی د بشر د اجتماعي تاریخ د کره کولو له پاره فولکلور ته مراجعه وکړه او په یقین سره یې ثبوت ته ورسوله چې بشري فولکلور د خپل ټول خرافاتي اشکالو سره په خپل ماهیت کې ډېر داسې څه لري چې د هغو څخه د هغه اولني انسان د مناسباتو په باره کې پېژندنه موږ پیدا شي چې د تاریخ د اثارو او لیکنې قدرت هلته له رکود سره مخ وي.

د بشر په لساني تاریخ کې ډېرې ښې او ښکلې ژبې هغه دي چې هغه قوي فولکلوري ادبیات ولري.

په یوناني ژبه کې چې د فولکلور کوم ذخایر موجود دو او هغه په یوه زمانه کې د اساطیر په نامه د متروک کېدو خوا ته وهل شوي وو، لو ان هغه یوازینی محرک دي چې موږ لې د اولنیو انسانانو د اجتماعي روابط د پېژندنې له پاره استخدامولای شو.

د (هومیریک) عصر اثار سره له دې چې د خرافاتو په ښځو پوښو کې پېچل شوي دي خو موږ سره له دې هم کولای شو چې زیات حقایق یې کشف کړو او له دغو حقایقو څخه د اجتماعي تکامل لوی رموزات ځان ته معلوم کړای شو.

د پښتو اولیو انساناتو په ادبیاتو کې یو شمېر کیسې شته چې په شفاهي ډول یې د بوډېلې سره ویلې دي او سینه په سینه راپاتلل شویدي څو د لیکنو ځېږي ته او بدلې دي. د غه شفاهي کیسو اکثراً د تقدس په جامه کې له هیریدو څخه ځان ساتلي دي چې د هومیر داستانو ته همدغه ډول دي.

د نړۍ په قدیمي ادبیاتو کې ویدیک ادبیات د یو قدیم فولکلور تمثیل کوي او د هغه کیسې چې معروفې یې (رامایڼ) او (مهابارات) دي د اریایي اقوامو قدیم ترین کلتور معرفي کوي.

موږ د بشر په فولکلوریک ادب کې په زیاته پیمانه د شاعریانو او پیریانو کیسې لیدلای شو چې د هر ځای هغې د محیطي شرایطو په تحت کې انکشاف کړی یدي. د مثال په ډول په هغه ځایو کې چې د سمندرونو برخاوو واقع دي نو د دوی د شاعریو د کیسو

قهرمانان د سمندرونو پر څپو سپاره وی چی د خشم په حال کی د سمندر د غاړو وطنونه غرقوی او د خوښی

په حال کی د زرغونو ټاپوگانو او زمردینو ځنگلونو څخه په ښائسته وزرونو ښکلی پیغلانی

په مینه او محبت د دوی پر وطنو پالونه راولی.

همداسی د غرو او ځنگلو په

شرایطو کی د داستان قهرمانان له سمندری شرایطو څخه بیل بیل اشکال لری.

دا د ښاپیریانو داستانونه د انسانی تخیل ظرافت دی چی له قدیم څخه تر اوسه راپاتی

شویدی.

دغسی تخیلات د نړی ژبی دادبیاتو دولسی هنر یوه ښکلی

عطیه ده او د بشری فولکلور لومړنی آثار هم له همدغی منبع څخه راپیل کیږی او د مترقی

داستان لیکنی تکامل هم له دغی لاری په عمل داخلی دی. هرڅنگه چی په هومریك داستانونو کی

د قدیم یونان ارباب النوع د خپلو مظاهرو سره توصیف کیږیدی تو دښه ډیری زمانی له پاره د

مقدساتو له جملی څخه شمیرل کیدل او لمانځنه به یی کیدله او د لمانځنه او تقدس هغه عامل ؤ

چی دغه قدیم ادبی آثار یی له هیریدو څخه ساتلی وه.

په دی داستانونو کی هومیر د خپل واس د قهرمانانو شهامتونه

او شجاعتونه ستایلی او د خپل وطن په ساتنه کی یی د وطن د خلکو پاك او سپیڅلی ارمانونه په فوق العاده هنرمندی تمثیل

کړیدی او داوجه ده چی د نوموړی شاعر داستانونه د بهترینو حماسو په جمله کی شمیرل شویدی. ایلیاد او اودیسه دوه

منظوم حکایتونه دی چی د (ترواجان) د جگړو داستانونه پکښی بیانیږی.

ایلیاد پر ۲۴ برخو مشتمل دی او

میلاد څخه به ترمخی لسمه پیړی یوی چی د ترواجان جگړه پکښی پیښه شویده اړه لری. په داستان کی د جگړی وروستی

نه ځلو پښت ورځی د خپلو ټولو قهرمانانو سره توصیف شویدی.

په ایلیاد کی د (اگاممنون) باچا

او (اچیل) پهلوان قهرمانی، د ترای د ښار محاصره او د یونانی لښکرو غلبه او د تښتول شوی شهزاده گی بیرته راوستل

د داستان مهمی ټکی دی.

اودیسی چی هم پر ۲۴ برخو مشتمل داستان دی د ایلیاد د داستان وروستی برخه

تکمیلوی او شروع یی داسی ده چی کله په جگړه کی (اچیل) پهلوان وژل کیږی نو د هغه پر وسله د (اولیس) او (اجاکس)

پهلوانانو ترمنځ جگړه پیښیږی څو (اولیس) له لښکر څخه جلا کیږی او پر یوه لار ځان یونان ته رسوی، هرڅنگه چی دی

د دریاب پر لار ځی نو کښتی یی ماتیږی او له دغه ځایه نو د عجایبو او غرایبو سره مخامخ کیږی.

(اولیس) دوه یو ویښت کاله سرگردانه گرځی د (سیکلوپانو) د دریابی د ښاپیریو چی یوه سترگه یی درلوده) جگړی کولی، د سمندرونو له باچاهانو سره

ډغری وهی او اژدهاگانو څخه ځان خلاصوی څو به ډیر زحمت لار پیدا کوی او کورته راسیږی.

ده نیت کړیدی چی کله یی ماینی بل میړه کړی وی نو دوی به یی خو کله چی کورته راځی وینی چی هغه لا د ده

پر نامه ناسته ده نو خوشحاله کیږی.

دا دی ده داستانونه دائی ډیر

قدیم داستانونه دی چی تر ان پوری پاته دی.

د (ترای) کیسه چی د ایلیاد

موضوع ده او په حقیقت کی د ټولو دغو داستانونو شمزی (ستون فقرات) جوړه وی.

هرڅنگه چی د بشری فولکلور یوه قدیمه نمونه ده نو دلته یی په ډیر اختصار سره لنډیز راوړو.

کیسه داسی ده چی:

د (ترای) د پاچا زوی (پاریس) د یونان یوه ښکلی

شهزاده گی وتښتوله، دا شهزاده گی د (لیدا) لور د (پلوکس) او (کاستر) خور او د (منیلاس) ماینه

وه.

هغه مهال چی پاچا (اگاممنون) د دی پیښی څخه خبر شو نو په چټکی

یی د جگړی ترتیبات ونیول او د ترای پاچا ته یی د جگړی اعلان وکړ او د خپلو ښتلو پهلوانانو

(اچیل) او (اولیس) سره د جگړی ډگرته حاضر شو.

د ترای پاچا هم د خپلو زامنو (هکتور) او (پاریس) سره د جگړی

ته‌ورا غلل.

جګړه‌د ټولو تشریفاتو سره شروع شوه.

هغه مهال چې جګړه توده روانه وه د باچا اګامامنون او اچیل پهلوان ترمنځ خوابدی

پیښه‌شوه‌او اچیل پردې خوابدی شو چې باچا ده‌ته په‌سپک نظر کتلی دی.

د جګړې څخه داچیل په‌وتلو دټرای لښکری وار په‌وار بریالی کیدې څو داچیل نږدې ملګری

(پاترو کل)) دټرای د باچازوی هکتور ووژه نو اچیل ته‌قهر ورغی او جګړې ته داخل شو،

ده‌په‌اوله‌ضربه (هکتور) ووژه او بیا یې پلارته ور تسلیم کړ، دهکتور تروژلو وروسته دټرای

لښکری ښارته ننوتې او ښار یې کلابند کړ.

یونانیانو چې هرڅه انتظار

ویوست‌دښار پرخلاصیدو بریالی نه‌شول‌نو وروسته یې یوچل وکړ اودلرګو یوآس یې جوړ کړ و

دهغه په‌اس‌ننو تل او په دغه لوبه ښار ته‌داخل شوه. دوی چې ښار ته ور غلل نو د آس له ګیډ ی

را ووتل او د ښار خلک یې ټوله ترتیغ وکښل او د یونان شهزادګی یې بیر ته‌راو ستله

او هغه‌چاچې‌دغسې بدکار کړی ؤ

ټوله په‌خپله‌سزا ور سیدل.

په‌داستان کی خرافاتی برخې‌چې دقدیم یونان دعقیدې

جزؤ څورا ډیره‌پر خه‌لری مثلاً وایې چې ټوله خدایان دالمپ له غره څخه را کښته‌شوی وه

او د یونان له‌پهلوانانو سره‌یې د ټرای د خلکو پر ضد مرسته کوله.

اچیل پهلوان ته مور په‌داسې او بو کی غسل ور کړی ؤ چې بدن یې ټوله داو سپنې شوی ؤ

یوازې د پښې پڅلکه‌یې لمده‌ونو کله‌چې په‌جګړه کی په‌ژهرولې لی غشی‌دده د پښې پر دغه‌پر خه‌ور

ښت له هغه څخه‌مړ شو.

دادبیاتو اوفو لکلور څیړ-ونکو پر هانو دد غو تار یخی

داستانو له څیړ نې څخه داسې نتیجه ایستلې ده‌چې‌دا داستانونه په‌هغو زمانو پورې اړه لري‌چې

اریایې پیر‌دایرو پاخوا ته ورشوه کیدی او د هغو سمو له یو مې اقو امو سره یې جګړې ی

کولې.

دد غو داستانو حکایات البته قدیم وه اوپه‌و لس کی په‌شفاهی

ډول ویل کیده څو دمیلاد څخه‌پ‌ه‌ا تمه ‌پ‌ړ مخ‌ې پیر‌ی کی هو میر هغه منظوم

کړل.

# ادب اوعدن

هر رنګه‌چې په‌نړی کښې رنګ رنګوا ری او تنوع لیدل کیږی اود بیلو بیلو شیانو او پیښو ترمنځ تضاد ونه‌او تناـ

قضو نه‌شته‌نو هرکله‌د هغو تنوعا تو د بیان او توضیح لپاره له‌عدد څخه کار اخستل کیږی‌او بیا هغه عدد دی‌چې ادب ته‌یې

هم پښه‌ور غزبدلی ده اوادب په‌دوه ډوله بللی شو؛ پر مختللی ادب او بیر ته پاته‌ او مبتذل ادب.

هغه‌ادب‌چې په‌نولنه کښې ډیری میلی‌او آرزو ګانې منعکسوی پر مختللی ادب بلل کیدلای شی اوچې دیووړ

ممتاز اقلیت د میلو ژباړ و نکی وی نو بیا مبتذل او بیر ته‌پاته‌ادب‌یې بللی‌شو هغه‌ژبه‌چې په‌هغې کښې لومړ ی‌ډول ادب

تربیت لاندی نیول شوی او پکښې د لومړ ی ډول ادب په مر سته دمیلو هرګندونه شوی وی په‌دغه ژبه کښې

دهمدغه‌ډول ادب‌په واسطه مطلوبیت او جذابیت احساسیږی اوادب میثاق یې په‌ادبی ناستو کښې‌ستاینه کوی او کومه

ژبه‌چې په‌هغې کښې دوهم ډول ادب دول او بو لی وي‌هغه‌ژبه همدغه دوهم ډول ادب دابتذال په‌رنګ اوناروغی اخته

کیږی او له‌رسیدلی نظره‌لو یږی ۰۰۰۱۰۰

## دلویانو خبری

که‌مړ ه یې حقیقت‌وو ایه‌او شیطان ته‌خجالت ور کړه.

«شکسپیر»

یې شهامته‌سړ ی‌هغه څوک‌دی په هغه‌ ځ ی کښې چې دا عتراض ځای وی یې‌په‌خوله کښینی.

(ابراهام)

د (سلیمان) لیکنه

# د زړې دبرې د معنوي کلتور یوه تابلو

ننني پراخه او پرله پېچلې بشري ټولنه هم د مادي وسائلو د پیشرفت له نقطه نظره

او هم د معنوي خصوصیاتو د تکامل له جهته له پخوانیو او لومړنیو بشري ټولنو څخه خاص امتیاز

لري ـ خو بیا هم دغه دی چې په مادي او معنوي لحاظ د اوسنۍ ټولنې او پخوانۍ جامعې ترمنځ نه شلیدونـ

کې اړیکې موجود دي او هم د دغه ارتباط له کبله ده چې مؤرخین او جامعه شناسان

(ټولنه پېژندونکي) د حالیه زمانې له تشخیص څخه د تېرو شوو پېښو او ټولنو کوي او هم

د دا تللو نسلونو زمانو په څېړلو څخه ناڅاپه پېش بینې کولای شي ـ له همدغه کبله د تار-

یخ پوهنې او سوسیولوجیکي (جامعه شناسي) معرفت ضرورت بیخي واضح کېږي.

دا دې د پوره تفصیل خبرو په نظر کې نیولو سره دېر وارد پخوا-

نۍ بشر د ژوندانه تار پخ یو

پاڼه را اخلو او پخوانیو د معنوي معتقداتو په سلسله کې هغه انسان چې د ډبرې په تېر شوي لرګي ما تول او ټوله کندرانې

د وحشي حیواناتو په ښکار کولو سر ته رسېدي، د هغه ډول عقایدو خاوندان وه باید وویل شي

چې دا لیکنه صرفاً معلوماتي جنبه لري او ډېره فشرده او مختصره ده ـ البته په دې برخه کې مفصل علمي

تحقیق له یوې خوا ډېر اوږد کار دی او له بلې خوا د یوې مقالې تر ظرفیت د باندې پرېښي.

د زړې ډبرې په کلتوري دوره کې چې په غربي اصطلاح (پلولتیک) او میزي، انسان د خپل

فکري او دماغي ودې په پایه را ، لې له کبله له ټولو هغو طبیعي قواوو څخه بېرېدې چې وده ته ئې شر

رساوه او د ټولو هغو طبیعي قدرتو سره ئې د مینې او محبت اړیکې درلو دلې چې خیر رسانې ئې

وظیفه وه ، همدغه د منافعو د جلب او د اضرارو د دفع احساس انساني ذهن د ټولو طبیعي قدرتونو احترام

ته را بېل واهه ، دغه احترام چې صرفاً د وحشت او بېرې او قلبي مینې او محبت څخه ئې الهام اخستی د زمانو په تېریدلو سره په لمانځنه او عبودیت بدل

شو او په کرار کرار د دغه طبیعي دوو متضادو قواو (خیر او شر) لپاره مادي مظاهر پیدا شول چې د دې متعددو مادي

مظاهرو د لمانځنې څانته خاص کلتوري اصطلاحي نوم لري چې (پولتیزم) یادېږي.

د پولتیزم په کلتوري دوره کې د طبیعي قواوو د معنوي قدرتونو مادي مظهر لمانځنه او عبودیت ډېر ساده او په عین

حال کې شاعرانه وه.

هغه رسم شوي آثار چې په ټوله اروپا کې له متعددو مغارو څخه ولاس ته راغلي

دي ژموږ د غه ادعا اثباتوي چې د دې رسمونو کې د (پلولتیک) انساني جامعې مذهبي معتقدات او جشنونه په واضح ډول رسم

شوي دي ـ د دې رسمونو په جمله کې تر ټولو مهم د هغه حیواناتو تصویرونه دي چې پخوانی انسان وهغه ته د احترام او

عبودیت په صفت قایل ؤ.

همدغه راز په عینې اروپا کې ملکو مخصوصاً فرانسه او اسپانیه کې د زړې

ډبرې د کلتوري دورې د قبرونو بقایا

موجودې نتیجې ته رسوي چې د هغه وخت انسانانو دمړي د ښخولو سره علاقه درلوده او په دې معتقدو چې مړي په قبر کې بېرته خپل ځای ژوند شروع کوي نو له همدې کبله به ئې دژوندانه دامراز ځینې ضروري وسایل دمړي سره یو ځای ښخول څو مړي به خپل قبر کې له هغه څخه کار واخلي.

همدغه راز دهغو آثارو څخه چې په اروپا، فلسطین کریما او مرکزي آسیا کې کشف شوي دا حقیقت واضح کیږي چې پخوانی نندرتال انسان دخپلو مړیو دقبرو په حفاظت کې ډېر کوښښ کاوه او عقیده ئې درلوده چې مړي به قبر کې خپل ژوند بېرته شروع کوي نو له همدې کبله به ئې دقبر سر په لویو تیږو رپوښي او اور به ئې پر بلاوه څو په دې ترتیب مړي د وحشي حیواناتو او یخنۍ له ضرره په امان وساتي.

د (پلو لتیک) دورې په معنوي کلتور کې تر ټولو دلچسپه خبره لا داده چې قدیم انسان ځینې مذهبي دسته جمعي جشنونه درلودل چې له دې جملې څخه ئې دبلوغ دمرحلې دشروع جشن ډېر په زړه پورې دی - هغه وخت چې به هلک دځوانۍ و مرحلې ته ورسیدی نو به د کورنۍ د مشرانو له خوا دده داخلاقو انحراف دمخنیوي په غرض بایداره کوښښ شروع شوا وددې لپاره چې هلک دځوانۍ شهواني او احساساتي مرحله دبداخلاقۍ و مرداب ته ورننه وځي له وړې نو به ئې دهغه دلاس او پښې څو ګوتې ځینې پرې کړې او یا به ئې په ځینو نورو مصنوعي ډاروځیو اخته کړ څو په دې ترتیب ددرد او رنځ په عذاب اخته شي او د شهواني سرکښه قوې له غلبې څخه په امن کې پاته شي - دا مراسم چې دمذهبي مشرانو له خوا به عملي کیدل ځانته خاص مذهبي او اخلاقي ارزښت درلود - مذهبي مشر چې دجادوګرۍ طبابت او مذهبي قوانینو او اصولو د تبلیغ وظیفه ئې په غاړه درلوده (شامن) نومیدی - (دا ډول کسان اوس هم په افریقائي عقب مانده او ځنګلي اقوامو کې موجود دی).

دژړې ډبرې باستاني انسانان ددې له پاره چې دحیواناتو دښکار په مورد کې دقومي او قبیلوي جګړو مخ نیوی وکړي دښکار قوانین چې مذهبي بڼه ئې درلوده په خپل وحشي او بدوي شکل وضع او عملي کول - ځرنګه چې ددوی ګذاره حداکثر د حیواناتو له ښکار څخه تأمینیده نو په دغه ښکار کې دموفقیت غرض به ئې دښکه شکوم په ډول د مځکې پر مخ او یا دکومې مغارې پر دیوال دمطلوبه حیوان تصویر رسم کاوه او دغشي په وسیله به ئې دغه تصویر ځوروه وشتی، کله چې به غشي د تصویر سره اصابت وکړ نو دا به په ښکار کې دموفقیت الهام بلل کیده.

داوه دژړې ډبرې (پلو لتیک) دکلتوري دورې دمعنوي کلتور یوه تابلو دا چې دغه ډول کلتور دهغه رنګه مادي شرایطو محصول و، ځرنګه ئې تغییر او تکامل وموند او په اوسني انساني جوامعو کې ددغه کلتور بقایا تر کومې اندازې پورې اثبات کیږي؟ دا نو یوه بله پراخه او همه جانبه تحلیل او شننه غواړي چې که ژوندانه او فرصت و بیا به ئې بل وخت سره ازنکاو.

---

هنري اصطلاح:

## رومانس

دا یوه فرانسوي کلمه ده چې پا یوه کوچني منظوم ترپیس باندې دلالت کوي دغه اصطلاح په لویدیزو ادبیاتو کې داسې یو اشعار یوه کوچنۍ پانګې، پند یا پارچې ته هم ویل کیږي، چې موضوع ئې مینه ده چې د شاعر د خاطر دانبساط یوه تېر بدونکې څپه به شاعر ته اندرز ترسیموي.

**پوئیټیکا:** دا یوه یوناني کلمه ده چې دادب پوهنې په یوه ځانګه باندې دلالت کوي چې دادب دتیوري او دهنري ادب په باب څیړونکې وي. همدارنګه دغه کلمه دشاعر یا ادیب دلیکنې په خاص طرز باندې هم دلالت کوي او کله کله هغه دشاعر یا ادیب د سبک په معنی هم استعمالیږي. دلرغوني یونان نامتو فیلسوف ارسطو د پوئیټیکا په نامه یو اثر اری په کوم کښې چې دادب په باب اصولي قواعد لوري او کله بیا نشري دی دغه کلمه که موږ تحت اللفظي ترجمه کړو نو دوش تری لاس ته راځي.

پښتو کوونکی «نصرت»

# د طبیعت ښکلا

د بڼې کتاب ونه وائي کله چې خدای تعالی (ج) دنیا پیدا او په شپږ ورځو تکمیل شوه نو ورته ولي کتل چې ډېر ښکلې نه ده رښتیا دا چې زموږ نړۍ چې د خدای تعالی (ج) په نظر کښې چې پیدا کوونکی ئې دی ښکلې وه. نو هغه کسان چې دا دې نړۍ کښې ژوند کوي هغه ئې له ښکلا څخه بې خبره او لذت نه ترې مومي.

زما په عقیده د طبیعت په ښکلو منظرو کښې فکر او توجه د ژوند له ښو لذتونو څخه دی، او هر څوک چې په دې حصه کښې غفلت وکړي د نیکمرغۍ یوه منبع ئې له نظره لیرې کړې ده. (همر تون) په خپله یوه رساله کښې چې دده تر ټولو اثرونو نوی او روانه ده داسې وائي:

«په طبیعت کښې داسې منظرې شته چې قلم ئې له ستاینې څخه عاجز دی، ځکه چې هغه ډول لطف په هیڅ عبارت سره بیان کېدلای نه سي کله چې د سیند پر غاړه ولاړ ئو او د څپو زمزمې اورو، او هغه سپین څکان چې نولوی، غونډې پر له اوږدې وینو، او وختي چې په یوې سر او یا په دښت کښې سفر کوو، او د لوی غرو په لمنو او د تېرو په ورته او آښتو کښې د طبیعت ساده ښکلا ته نظر اچوو، او یا هغه وخت چې د اور د غورځوونکي غره په لمن کښې ولاړ، او پر سر باندې ئې د اوږدو لمبو وینو په همدې ډول او وختو کښې د طبیعت د عظمت او پرتم احساس، او زموږ روح له مادي محیط څخه وتلی د خیال په فضا کښې داسې پورته ځي چې په ځان نه پوهېږي».

د ده خبره برځای ده. رښتیا دا چې د طبیعت لوبې او جلال زموږ تر صفت او درک لوړ دی. لیکن ښه دا ده چې د خپل ادراک په اندازه ئې له ښکلا څخه بهره من، او په هغو مسئلو کښې فکر کول چې زموږ تر پام او تصور لوړ دی سترګې پټې کړو. طبیعت ښکلی دی لیکن خلک نه پوهېږي سترګې لري خو نه په وینی. ګوري لیکن نه وینې وینی خو د کاینات له رازونو څخه خبر یدلای نه سي.

داسې خلک لکه خیالي مجسمو نه په دې نړۍ کښې سرګردانه، او طبیعت په دې پراخ غولي کښې له ټولو هغو ښکلو، ظاهرو څخه لذت او خوند نه اخلي. «روسکن وائي: د موجوداتو لیدنه او پوهېدنه یو کار دی چې فقط لوی خلک ئې په سر رسیدو سره بري مومي. موږ هم د روسکن په شان سترګې لرو.

لیکن افسوس چې موږ یا خپلو سترګو د طبیعت له بې شمېره مزایاو څخه یوه لطیفه او نازکه ذره و نه کې منظره هم نه وینو، او هغه زموږ برخلاف په یوه نظر ټول شیان وینی او هم ئې پر دوانو د ژوند خلکو د پاره یاتوی.

«امرسن» وائي: «څوک چې د بصیرت سترګې لري او هره دقیقه نړۍ ته ګوري نوی، نوی شیان وینی نړۍ د هغو په نظر کښې یو تنداره تون دی چې مدام ئې پردې نوی کیږي او هیڅ شی ئې تر یوې لحظې زیات پر یوه حال باندې نه پاتې کیږي یاقوت او کهنونه یا هره ورځ او هر ګړۍ نوی رنګ مومي، ونې هم ګړۍ په ګړۍ خپله ښه ایښه او ګلان هم هره دقیقه خوشحاله ښه مومي آسمان هم چې د مځکې اینداره ده

دورځې پەزړ رنګه کېږي.

دطبیعت محبت داسې بخښش دی چې هرچاته ئەدی ور کول شوی، هغوك چې طبیعت پالی ئې لەکرم تکلیف او پریشانی هغەئی دمحبت او عفت لەخوند هغه داسې برخەاخلی لکه چې ئل ئی یو محبوب لەپرخەسره ناست لە بیلتون او آزار هغەئی هیڅ چارنه کوی.

دایې ښکلی شیان دطبیعت کوچنی ذری دی او لەدی سببه دهغه چاچې طبیعت خوښ وی دښکلا منبع ته رسیدلی، په ښو سترګو وهغەسپیڅند تەچې او پەئی پاکی صافی دی نژدی شوی پەمادی کثافاتو نەککړیږی.

دطبیعت سره مینه لەهرەسببه دلذت او نیکمرغی مایەده. هغکه چې طبیعت هیڅکلەزړه تیا نەموهی، او به دبی وفایی قدم ونه اندی کوی. طبیعت یو داسې مهربان عاشق دی چې دخپلی معاشقې دزړه سا تلو دپاره هره ورځ پەنوی نوی ښەښکاری او بە لیدوئی هیڅ کله زړه نەمړیږی. پاك وبی الایش ازدواج قول دطبیعت دمحبت پرچینه او بەشوی، دی.

هغه کسان ډیر بدبخته دی چې د طبیعت له ښکلا هغه ئی سترګی پټی کړی دمهرو په شان ئی ورڅا تەنه ګرزی دلمر لەختو او لویدو هغه خوند، نەاخلی، دپسرلی لښکرئی روح ته ئی ژوی، دبهاندو او بوزمزمې ئی احساسات پەښور نەراولی. دښکلو مرغانو شیرین آوازونه ئی پەسختو زړه و کښې اثرنه کوی دګل وږمه، او دبلبل نغمه ئی هیڅ نه سره ښوروی.

کله چې دپسرلی شمال چلیږی او دشګوفی پاڼی لەښاخو هغه پرڅنو سبزو پاندی ژوی، او خپله خوشبویی په هرځای کښی لەهانه سره پاشی. په دښتو و بیابانو کښی خودرو یه ګلان دباد په چلیدو له یو او بل هغه داسې مینلی لکه د پیغلو نجونو او ځوانو ښکر ډله چې پەنڅا او لوبو کښی یوله بله په غیږ کښی نیسی. بورا او مرغان په شنو وښو او ګلانو کښی ځای نیسی اوورو ورو خپلی خوږی اوازه- وړو لکی نغمې چې دطبیعت لەاستاد هغەئی زده کړی دی وائی. څوك بەوی چې پەدی ورځو کښی کرار ناست او روح ئی دپسرلی دلمر پەتأثیر پە جوش رانه سی، پټی آرزو ګانی ئی بیدارە، دنیکمرغی خوشحالی پە هغه کښی دمطلب ټکی تەورنەرسیږی؟ لەدی هغه چارو چې مړی یەهم پەقبرو کښی دپسرلی لەخوښی هغه کفنونه څیری، هغه کسان چې ژوندی، او دپسرلی د کاروان راتلو تەپەښه زړه سره استقبال نه کوی دمړو په ډله کی شمار او مړه دی چې دژوندځپی ئی ښوروی. (بفرد) دپسرلی دورځو پە ستاینە کښی وائی. د ښترله پی کوم، پەوښو او ګلانو کښی ئی ور کېږم. دلنه او هلته کوته کوته شنی وی لکه دزمردو تېی سره مینځی، او سرونه ئی آسمانو ته رسیږی. لەلیری او نژدی هغه دمرغانو آوازونه غوږو ته راځی او تەبە وائی چې دپسرلی دژوند خوښیو او خوشحالیو هرځای او هر شی پەښور راوستلی دی. وایه، وني او ګلان می مخ، مخ تەشوی او راباندی مینلی. ښکی می په یوه کوچنی واله کښی چې روانو لاندی بهیږی لمدیږی. د ونو دپاڼو ښور یده، دمرغانو الوته می روح پەښور راولی. هغه زما پر سر سر پیږه یوه ډله خوش آوازه مرغان پەپرواز الوتی، دآسمان په فضا کښی ئی هاله جوړ تەګړ. ورو سته دونړ په پاڼو کښی سره غلی شوی. مګر هغوی آسی غوږو ته رسیدی. څوښی او خوشحالی می لکه شیرینی او په دروح په تل کښی ایښی. لمردونو په پاڼو کښی خپله رڼا دزرینو ګلانو په شان پروښو اچولی، پرپاکه فضاءئی سحر امیزه نقش او نګار د شنو وښو پر مخ پاندی جوړه کړی دی. لمر می تودوی، دهوا لطافت، او د ګلانو وږ می می روح تەخوشحالی بخښی. زه غواړم چې دهغه نغمو یو لنکی مرغه په شان زمزمه پورته، پەشنو وښو او چلند شمال کښی سپور رته سپور رته غور هیدلی، او پرا خښیاره وخاندم. دپسرلی د هوا وخت ازګړی د انسان پەلیم عمر کښی محدود داولی دی. زه فقط پەدی وخت کښی دژوند خوند حسوم. دغه طلائی لهڅه پر وخت زما د هغکنی عمر سره ایکی نه لری.

د اغه پایې دی چې زما د ابدي ژوند له دفتر څخه بیلې شوی او د انساني ژوند له غم انګیزو پاڼو سره یو ځای

مخني دی» ګمان مه کوی چې د طبیعت ښکلا په بڼ، چمن، دښت او بیابان پورې تړلې وي. ښارونه

هم په خپل وار له ظرافت او ښکلا څخه برخه لري. «ورډسورث» سره له دې چې د طبیعت زړه وهونکی

مین و خو د سهار پر وخت د خپل ښار په ستاینه کښې داسې وایي:
«پرته له دې لویه ښاره بله هیڅ

ښکلې منظره نه شته چې هر سهار تر لمر ختو د مخه د آسمان په رڼا کښې د مځکې ناوې په شان ایسي چې

پر خپل ځای کراره بیده او د سهار زیری ته پرتنده مخوری. لوړې ماڼۍ کلیساوې او نور

ځایونه ئې له غرو سره برابري کوي. د سهار په رڼا کښې دې ښار ښکلي ښکاري ته به وایي چې د غه

لوړې ښارې د آسمان له ستورو سره، یو ځای په تدریج سره په اوقیانوس کښې رڼا پاشي. راځه

او نیاز کوي په دغه ښار کښې زړه، خو چوو نکي آرامي کراري حکمفرما، او ټوله خلکه ئې د ناز

پر بستر آرام پراته، د ژوند غوغا نه وي. په دې آرامي او کراري کښې په زړورازو نه پټه دي چې هغه

رازونه د غرو په لمنو د کار بزو پر غاړه او بیابانو کښې له شو موندلای. د پر وخت له کښې چې د آسمان پیغله د ختیځ له لوري

ښکاره شوی، او خپل زرینو د ینشان د دیوا لو پر ځو کو غوړوي د پیغله بیده ژړوله ورو، ورو، د

سهار له خوا له خوبه بیدار، جنبش او حرکت ته ئې واداره کوي. په کوځو کښې ټکه او ر اټکه شروع

شوي، او خلکه د ژوند غوغا له سره شروع کوي».
د غه خبره سمه او پر ځای ده.

لیکن «ګرای» یوه بله خبره کوي:
«ژوند د ښار په ځلورد یوا لو او د ژوند د غوغا په منځ کښې انسان

ستړی کوي. چې د دې ستړیا د ایسته کیدو د پاره ښایي خپلې سترګې له دې مځکني محیط څخه

پورته وړه ی آسمان وو بشرے ځکه چې د هغه په لیدو د خاطر له صفحې څخه خستګي او نا آرامي محوه

کیږي».
(روسکن) په یو ځای کښې ګلان ستایي او داسې وایي:

«د غه ښکلي او زیبا ګلونه د ځاکو د پاره د غرښې مایه ده چې هر ځوک ئې له ښکلا څخه لذت مومي،

وه و کې د ګلانو په لیدو په هوس داسې، سپیځلي او پاک زړه خلکه د هغو په پاڼو کې د خپل ځان د اخلاقو

او عاطفو نمونه وینې، د عیش او نشاط خلکه د خپل مجلس د ښکلا د پاره آزاد ګلان په بندګۍ د ار ستلي

په یو تنګه او کوچنی لوښي کې ئې اچوي.
کلیوالي ښکلي نجونې د پسرلي په وخت کې خپل سر او صورت

په ګلانو باندې ښکلي، په دې ساده او مختصرو ګیڼو سره خپله خدای (ج) ورکړې ښکلا ډیره کوي.

شاعران هم ګل د الهام منبع بولي او د ښکلا په ستاینه کې ئې زړه وهونکي نغمې وایې او کله چې رنګه په رنګه

ګلونه یو ځای سره وتړل شي لکه قوس و قزح (سره و زرغونه) په خپلو بیلو بیلو رنګو سره سترګو ته نوازش ورکوي.

طبیعت انسان ته نعمتونه ور بخښلي، په هر موسم کې په مخصوصو ګلانو سره پروریښت مومي چې د کال په بیلو بیلو

فصلونو کې د ښکلا د مینو سترګې تل د ګل د بڼې په لیدو سره برانستل کیږي حتی د ژمي په موسم کې چې ئې په دواوړي په

کفن کې پټیږي بیا هم طبیعت د ګلانو له پروریښت څخه دریغ نه کوي. یعنې په یو ګوښه و کنار کښې ځینې ګلان شنه

کیږي خو هیڅکله د ښکلا له مظاهر و او لیدو څخه بې برخې نه شو».
د ونو پاڼې هم یو خاص ظرافت او

ښکلا لري، د پسرلي په وخت کښې چې د بڼ ونې، شنه جامه وا غوندي. د طبیعت ښکلا تر نورو فصلونو زیاته شوي، ته به وایې

چې د قدرت لاس ئې د ابدي ښیوضاتو له خزانې څخه زمرد باران ته کړې ده د ښه مرغه ځینې ونې د منې له باد و او د ژمي

له یخ څخه خپله شنه جامه له ځانه نه لیری کوي. او تل د غه ګران خلعت له ځانه سره اري. د ژمي موسم چې د کاینا تو

پښه واړه وي خو سمدستي د پسرلي تر و تازه هوا ئې ځای ونیسي.
(نور بیا)

پښتو کوونکی (خالقي)

# دنطاقۍ دهنر د زده کړې اساسات

څرنګه چې ليدل سوي ده د ټولو خلکو ترمنځ دغه ذهنيت موجود دی چې دنطاقۍ آرت او په دې ځانګه کې د استعداد تربيه کول - پوازې او پوازې په علماؤ، د پوهنې او مطبوعاتو پوري پوري خاصه ده لري. او دغه کسان تر زياتې اندازې پوري د دغې ځانګې سره هماهنګي او ارتباط پيدا کړی، خو نور کسان په دغه برخه کې کومه حصه نه لري.

دغه مفکوره چې د بې معلوماتي او علمي سويې د کښته والي څخه نشأت کړې دی، هيڅ ډول حقيقي جنبه او اړخ نه لري.

څکه د نطاقۍ هنر پراخه ساحه لري په هر سړي او هره ځانګه کې چې پوخت وي ارتباط لري. البته د شک ځای نه دی هغه کسان چې په اجتماعي، سياسي، حقوقي او نورو ځانګو کې مصروف دي تر نورو خلکو زيات د ژبې فصاحت او بلاغت ته زيات احتياج لري.

او د نطاقۍ د آرت څخه په اختصاصي توګه استفاده کوي.

او مکلف دي چې د دغه آرت په تقويه او تربيه کې خاصه توجه وکي. د دغه موضوع د دې دليل نه سي کېدای چې نور خلک يعنې هغه څوک چې د ټولنې په نورو ځانګو کې وظيفه سرته رسوي د دغه آرټ د تقويه کېدو سره علاقه پيدا نه کي او په دغه ځانګه کې د ځان څخه لياقت څرګند نه کي بلکه په ځيني ډول دا ايجابوي چې خاصه توجه ولري او د نطاقۍ د هنر په برخه کې په ښه اندازه خاصه توجه ولري. څو په هغه وختونو کې چې ايجابوي د ټولنې په محضر کې په آرامو اعصابو سره خپلې خبرې په قوي منطق او متينو کلماتو سره بيان کي څو د اورېدونکو توجه په ښه توګه ځانته راجلب کړي.

د نطاقۍ هنر په اوسني ټولنو کې د ژوندانه څخه نه جلا کېدونکی جز ګڼل کېږي. او هغه ته زيات احتياج سته. څکه نو مجبور يو چې په هره ممکنه وسيله سره په دغه ځانګه کې معلومات لاس ته راوړو او په هغو ځايو کې چې ايجابوي يې تطبيق کړو.

د دې دپاره چې په دې برخه کې د هغه چا سره چې غواړي په دې باب معلومات لاس ته راوړي مرسته وکو د دغه مضمون د مطالعه کېدو په باب توصيه ورته کوو. ځايي د دغو اساساتو په نظر کې لرلو سره د نطاقۍ په هنر کې معلومات لاس ته راوړي.

زموږ ستر رهبر او د اسلام د پاک دين ستر پيشوا حضرت محمد (ص) فرمايي:

«د ژبې فصاحت د سړي جمال او ښايست دی» په دغه له معنې ډکې جملې کې يو جهان فلسفه نغښتې ده او په هره اندازه چې د هغه په باب عميقه مطالعه وکو په هم هغه اندازه عالي مفاهيم لاس ته راځي. په حقيقت کې خبرې کول د شخصيت څرګندوی دی او د سړي حقيقي ارزښت په ښه ډول څرګندېږي، د بلې خوا د کلام فصاحت او د نطاقۍ قوه د ژوندې کړې او پوهې د پېرو مهمو عواملو د جملې څخه دي په دې معنې که يو سړی عالم وي په يوه برخه کې علمي توانايي او قدرت لري ليکن د افادې قوه او هم دارنګه د خبرو

فصاحت په دغه کې له لیدل کېږي او ځکه دده ټول هغه معلومات او علمیت چې لري یې د استفادې وړ ګرځي.

او د نورو ده علمي سویې په لوړولو کې پوره برخه لري. ځکه دغه دوه صفته یعنې علمیت او ژبې

فصاحت لازم او ملزوم دي هغه ځای دی چې درسیږي به دې باندې مکلف کېږي چې د خپلو مسلکي

او خصوصي معلوماتو په څنګ کې یو بل هنر چې موږ د لته هغه د نطاقۍ او یا د خبرو کولو

د استعداد په نامه یاد کړی دی په خپل ځان کې تقویه کړي. ځکه دغه صفت په یوه خاصه ځانګه او یا

بوې طبقې ځانګړی پورې اړه نه لري بلکه بېله دې چې کومه اختصاصي ځانګه په نظر کې ونیسو دغه صفت

په ټولو پورې اړه لري. او په دې اساس هر څوک چې په ټولنه کې په یوه فعالیت برخه ولري د خبرو

کولو هنر ته زیات احتیاج لري.

د افکارو، احساساتو او علمي معلو- ماتو د ښکاره کولو او څرګندولو د پاره دوې لارې موجودې دي. یوه د لیکلو قدرت او بله

هم د نطق او افادې قوه، د لیکلو قدرت یوازې پر علم باندې ولاړ دی هیجاناتو او عصبي ناآرامي

په دې برخه کې مداخله نه سي کولای، یعنې لیکوونکی په آرام روح، د هغو کتابونو په څنګ کې چې علمي مدارک یې بلل کېږي

قرار لري او خپل مطالب د کاغذ په مخ باندې لیکي. برعکس د نطق قوه سربیره په علمي ذخیره باندې په ویلو، اعصابو په

کنټرول د آواز د توازن تربیې، د نطاقۍ په وخت کې د مخصوصو حرکاتو درک د دې ډول طرز او د هغه په شان نورو تمرینونو ته

احتیاج لري، د دغه خصوصیات په خپل ذات کې زیاتې مطالعې ته ضرورت لري چې په دغه لنډه مقاله کې د هغو د یادولو ځای

نه سته خو فقط دومره کولای سو چې یو لنډ او مختصر معلومات د دغو موضوعاتو په باره کې په تفصیل سره شرح کړو.

ښایي ټولو خصوصاً هغو کسانو ته چې د استادۍ وظیفه ور په غاړه ده ګټور ثابت شي.

دغه ټکی چې په دغه باب خبرې وکو د اکار د ایجابوي چې د دغه نکته احتراماً ووایو چې د کاغذ په مخ څه لیکل

او یا د هغو ډول خاص ځای ونه ځان ته لري په هر ځای او هر وخت کې نه سي تطبیق کېدای. هغه مهم مطالب چې تاریخي،

علمي او سیاسي جنبه ولري او د هغو برابر ول زیاتو علمي تتبعاتو ته اړه لري د کاغذ په مخ لیکل کېږي او په ټولنه کې

ویل کېږي، د دغه مطالبو په څنګ کې نور موضوعات په روزمره ژوند کې تصادف کوي چې سړی په دې مکلف کېږي چې خپل

مطالب په هغه مقاماتو په ایکنه کې څرګندوي په شفاهي ډول یې ښکاره کوي. د دغه ډول عادي موضوعات هیڅ وخت

د کاغذ په مخ نسوای د اوړلای او د بلې خوا دغه ور ځنې موضوعات که د کاغذ په مخ ولیکل شي او د ټولنې په مخ کې وویل شي نو ددې د پاره چې نوموړی شخصیت او

علمي معلومات د تعرض څخه وساتل سي مجبوره کېږو د نطاقۍ هنر په خپل ځان کې وروزو او

د هغه په مرسته خپل مطالب په ډېر متانت او منطقي ډول څرګند کړو. او د کلماتو په سحر سره

د اوریدونکو په روح کې تاثیر وکو. د هغه هدف ته د رسیدو د پاره باید د لاندې نکات چې د

نطاقۍ د هنر په تقویه او پرورښت کې ګټور دي په نظر کې ونیسو.

## ۱- احضارات:

د هر څه د مخه هغه موضوع چې غواړی د هغه په باب څه وواياست لازمه ده علمي قدرت

ترو دستۍ قدرت پورې را تحلیل کړی یعنې تر هغه ځایه چې امکان لري، موضوع باید د هري خوا

مطالعه کړای او په دغه باندې پوره حاکمیت پیدا کړ. که موضوع پراخه وي او د دې امکان

ونه لیدل سي چې ټول نکات یې په حافظه کې په ترتیب سره قید سي، په هغه صورت کې نو د موضوع

برجسته نکات د فرعي عنوانو په شکل د کاغذ پر مخ یادښت واخلی.

دغه یادښت تاسې ته دا موقع در کوي چې هغه موضوع کم چې غواړی د هغه په باب خبرې

وکړی په مسلسل ډول بېله کومې سکتګۍ څخه د یو پلان په چوکاټ کې بیان کړی او په دې ترڅ کې د

اوریدونکو علاقه او دلچسپي

چلو خبرو ته ژباته متوجه کړو. که هغه موضوع چې تاسو غواړی بري پرې د کړی دا ایجاب کی

ی بو مثال داوړی باید مثال اوریدونکو دسویې سره مطابق ی. که په خبرو کی دجملو تسلسل وجود نه وی او په موضوع کی راګند، کی منځ ته راسی او بولکی ګاهی دآخیره او کله

دسره هغه موضوع وخپل ی او عملی په منظم ډول بیان نه کی په هغه وخت کی دی په دې نه سی بریالی کیدای چې داوریدونکی علاقه اجلب کی تو ئی ټوای خبری بی تره باتی کیږی اعضادات به

حقیقت کی یو چو کاټ دی چې طاق مجبور نه کوی چې دهغه کاټ هغه ونه وزی او خپلی خبری په هغه محدود کی ه سوی ساحه کی په منظم ډول سره بیان کی.

## ۲- د اعصابو کنترول:

دنطاقی په هنر کی داعصابو کنترول ډیر مهم رول لری ددغه صفت لاس ته راوړل بو ساده او آسانه کار نه دی بلکه دغه کار یات تتبعات، مشق او تمرین یجابوی. امکان لری دغی نکتی ملتفت سوی یاست چې هر څوک نطاقی دشروع کیدو په وخت کی ریږی اندازی خپل اعصاب دلاسه ورکوی او بو ډول وارخطایی حسوی ددغه حالت بو طبیعی امر دی و هیڅوک که هغه هم قوی اعصاب لری، ددغه امر هغه نه سی مثلاً کیدای انګلیسان یو مثل لری، چې وایی، هر و بولکی دخبرو دشروع کیدو په وخت کی خپل اعصاب بایلی حتی ګلدستون. (ګلدستون د ۱۸۶۸ څخه تر ۱۸۹٤ کال پوری دری ځلی دانګلستان دصدراعظم په حیث انتخاب سوی دی)

دغه لوی شخصیت سر بیره پر دې چې بو قوی او غښتلی سیاست مدار ؤ په اد بیاتو خصوصاً دنطاقی په هنر کی ساری نه درلود. او دجهانی شهرت درلودونکی ؤ. خو سره ددی د نطق دشروع کیدو په وخت کی بی په خپلو اعصابو کی یو ډول ناآرامی احساسول. پس ددی څخه دا معلومیږی چې نطاق حتماً دخپلو خبرو دشروع کیدو په وخت کی تر یو ډول هیجان او یا اعصابو دخرابی چې احتمال لری دمجلس دآرامی او یادا ر دیدونکو دشمیر څخه وی، لاندی راځی دغه نقص امکان لری دلاندنیو ټکا نو په نظر کی نیولو سره په پوره ډول لیری سی. او یادا چې ښایی تر یوی اندازی پوری په هغه کی تخفیف منځ ته راسی.

ددی دپاره چې په اعصابو کی کنترول تامین سی دا کار دا ایجابوی هغه موضوع کم چې غواړی بیان یی کړی په آرامی او کرارۍ سره یی شروع کړی دغه کـار د ی خــوا څــخــه او ریدونکو ته دامو قع ور کوی چې د خبری ویونکی (نطاق) سره الفت او محبت او پیوند ګلوی پیدا کی. په دی تر څ کی بی او ریدو ته تحریک سی. او د بلی خوا څخه کرار کرار ستاسو څخه داعصابو ناآرامی لیری کی د غه کار دیلو یو ډول جرأت پیدا کوی. سر بیره پر دی په دی هم پوهیدای شی چې خپل آواز په کومه اندازه اوڅه کړی ی څرد هغه څخه استفاده وکی.

سم دریدل او خندانه څهره در لودل تاسو ته ژبات نوت در کوی چې په خپل آواز او اعصابو باندی حاکمیت پیدا کی. دخبرو په وخت کی دخبرو د ورژد کیدو او یو په بل پسی دجملو او کلماتو دویلو څخه ځان وساتی. دجملو په منځ کی لږ مکث کول او کلمات په وضاحت سره ادا کول داوریدونکو مخ او ستر ګو ته پسله یوه اندازه وخت څخه کتل داسی عوامل دی چې ستاسو سره د نطاقی په وخت کی مرسته کوی او دغه کار د اعصابو تسکین منځ ته راوړی.

۳- یو بل عامل چې دنطاقی په هنر کی ژبات مؤثر دی د کلماتو ساده ګی او دآوازتوازن دی کلمات چې په هره اندازه ساده او جملی دلغوی تکلفاتو څخه خلاص وی ژ بات مو ثر تمامیږی او اوریدونکی ځانته په راجلبوی برعکس ثقیل او نامانوس کلمات داوریدونکو یو ډول عدم دلچسپی منځ ته راوړی. دجملو او کلماتو په تلفظ کی دی ساختګی ته ځای نه ورکول کیږی او آوازدی دنطاقی په وخت کی په طبیعی ډول وساتل سی. البته دآواز کښته او پورته کول په مناسبو احوالو او په کلماتو او جملو باندی دآواز

«پاتی په ۲٤ مخ کی»

ژباړونکی (رحیمی)

# EXISTENTIALISM

# یا

# دوجودیه‌و مذهب

## انساني کرامت اوخود اراديت ته عقيده درلول

## داګزیستانشلزم داساسي اصولو څخه بلل کیږي

## (دوهمه برخه)

په‌عمومي ډول د وجوديه‌و دمذهب پیروان دانسان لپاره دازادۍ اودنفسي دتفوق داصل

څخه د فاع کوي (جاسپرزاو مارسل) هرهغه عمل چې شخصیت او انفرادیت یکښې نه‌وي بدبولي

او حتی دا نسا ن د اجتماعي فعالیتونو پرضد دلومړني اقدام په ډول دهغه دحقیقي ارزښت

دکموالي په‌لاره کې اعتراض کوي.

جیمز کولنیز James Collins

وائي (دننورڅي یوفرد فقط لکه دځو واحدونو څخه یو متبادل واحددی چې تر تکنیکي عمل

لاندې راځي اویا د مقداري معیارونو د تعدیل لپاره دقوي په شان دی.)

دوی عقیده لري چې دچارو په طرحه کیدو کې هرفرد دیوخاص اهمیت درلودونکی دی اوهرڅوک پخپله په خپل استخلاص پوری

تعلق لري. هیڅوک نشي کولای دبل چاباره ارزونه باندې واخلي اګزیستانشلستان انسان د هرفرد

لپاره په‌خوداراديت باندې ټینګار کوي او انسانیت دازادۍ سره مترادف بولي دوی وایي (خودي)

اساسي صفت حریت دی او دچاسره په عقیده دغه حریت په اتفاقي ترادفاتو کې پټ دی او انسان د

ترادفي اتفاقاتو یوه مجموعه نه‌ده: (دی کولای شي خپل ځان دهرډول اجتماعي نقش څخه جلا کي که څه

هم دده لپاره ددغه نقش رديدل دکلتوري حالات دهغه‌ت په نسبت امکان ونه لري.) دوی وايي کولای

سو دغه حریت په‌نظر کې ونه نیسو ولې خوترهغه وخته چې انسان وي نشي کولای هغه په‌پوره ډول محوه

او نابود کی. ازادي اساسا دانتخاب لیاقت دی او نه یوازي دانتخاب دیوه عمل متضمن دی بلکه یوه (دوام داره مبارزه) وي.

دانسان ازادي چې د وجوديه‌و د مذهب پیروان دهغه څخه بیان کوي د ودوستي عللونو دحکمت درلوونکي

او دمحرکي قوې درلوونکي وي.

دغه دعمل لپاره‌یو دابلل دی، یو احتیاج دی چې باید پوره‌سي او یا یو

امکان دی چې باید تأمین‌سي یوه انګیزه ده چې دراتلوونکي وخت څخه‌خپل قدرت لاس ته‌راوړي. انګیزې لاس ته‌نه‌راځي

مګر داچې خارجي وجود هغو ته‌ور کړه سي (زه‌دخارجي وجود وسیله‌یم نو څکه دانظر به‌چې انګیزه او انساني هدفونه

کولای سو طبیعت، اجتماع او یاماوراء طبیعت ته په‌مراجعه کیدوسره په بشپړه ډول معلوم کو داسی ده چې ګویا موږ

انسان یوشي تصور کو. داوه دسارتر نظر یه چې دهغه په‌سبب نه باید دانسان وجود دخارجي عناصرو او یا تقدیراو

قسمت دلاري وټاکو.

دفرد په‌آزادي پوری مربوطه بله‌د لچسپه نکته چې د وجوديه‌و مذهب دپیروانو په واسطه تبارزکړی دی

اده هرنګه چې آزادي دشخصي
سئولیت مستلزم ده نو بنا بردې
و خطر او یو مسؤلیت دی یو
نفرادي تصمیم ځایې دیوه فرد
ول سرنوشت وټاکی او یا هغه
و دبله سره وهي لیکن دبشر
ټولو افرادو د سر نوشت سره
راو کار نه لري.
«دانفرادیت په وجه داده چې
نسان دخپل موجودیت سره شخصاً
علق نیسي او کولای سی چې دخپل
جود په هرنګوای سره فقط دخپل
مان د شرایطو او امکاناتو
مطالعې دلارې هغه پوه سي.
دهغه ځایه هغه چې انسان
کولای سی ددغو امکاناتو په
ستشهاد سره تصمیمو ته ورسي دی
دخپل وجود حقیقت لاس ته راوړی
و یاداچې هغه دلاسه ور کوی.»
نا پردې هغه فردچې دموجودیت
و شمو ریت په مقابل کی مسؤل
ه دی او دطبیعت، ټولنې، او نورو
فرادو مرګ ته اختیار کیږی
په هر صورت باید ژوندانه دمفهوم
سؤلیت په هر تعبیر سره چې وی
خپله یې په ځان قبول کی. فرد باید
خارجي منابعو د مرستې څخه پرته
ټول بشریت بار په خپلو اوږو باندې
ول کړی. و قعي خودي ته رسیدل
هغه شی چې دوجودیه مذهب
یروان یې اصلیت بولي بوازې او
وازې دتصمیمو نو د نیولو او خطر
ولیدلو دلارې میسر کیږی. دانسان

دپاره دلار چوونې پر تسیب چې
دانتخاب په دوران کی واقع وی
هم هغه دموجودیت هرګندول دی
چې دخطر قبلیدو ته حاضروي...
همیشه ژوندچې هغه دقهرماني ژوند
هم بلل کیږی هغه انسان دی چې
فقط دټولو شیانو په قربانیدو کی
میسره کیږی.)
به ټولو تصمیمونو کی چې
انسان یې په دې دنیا کی نیسي
همدغه خطر او مسؤلیت مضمر دی
او هغه تصمیمونه چې دبصیرت او
کنترول څخه دباندې وي درد او
خفګان منځ ته راوړي.
د همدې دلیل په بنا انسان
په یوه تراژیک موقعیت کی قرار
نیسي او په چپر درد، خفګان کی
واقع دی. د همدې دلیل په بناسره
دوی چې دی دومره خوار معلومیږی
دهغو سره ددوی مسؤلیت پرغاړه
لري.
د دې ژبې شاعر (حافظ)
ویلی دی!
آسمان بار امانت نه توانست
کشید
قرعه فال بنام من دیوانه
زدند
په خلص ډول دا ګزیسټانشلزم
دفلسفی او نورو ډولو په نظر تفکر
نباید دیوه محض دماغ محصول وی
بلکه باید د یوه فرد د ژوندانه
تعلقاتو بیانونکی وی دیوه سړي
فلسفه باید دده دمافی الضمیر یعنی

هغه شي چې دده ټوله ژوندکی دهغه په ګرو
کی واقع ده وی یعني فیلسوف باید
پخپله هم په هغه فلسفه کی چې هرګندوي
یې په خپله ژوند غلوی.
د وجودیه دمذهب پیروان د
معلوماتو یعنی د ریاضي پرابلمونو د
جوابونو سره چې معمولاً د کتابونو په
وقایه کی ایدل کیږی ځانې علاقه نه لري
په عوض کی دوی علاقه لري چې ویونکی
معنوی جدایې ته تحریک کی. بنا پردې
د دغې فلسفې نتیجه هم هغه تاثیر دی چې
پرسړي باندې یې اچوی. دوی احساس
کوی چې مهم شی عبارت دهغه تغیر څخه
دی چې دانسان په انګیزو او دده په
احساساتو او توقعاتو کی پیدا کیږی،
نه هغه زیاتوب چې دده په لاس ته راغلی
اوپوهنې کی واقع کیږی. دغه ډول
طرز العمل یو ښکاره استنتاج دی د
هغې تفلسف په مقابل کی په دې اصرار
چې دیوه متفکر شخص تعهدات دهغه
تعریف سره چې دی یې د حقیقت په باب
هرګندوی ارتباط ورکړه سی عادتاً
دفلسفې شاګرد داسې فکر کوی چې دده
وظیفه دیوالي نظریاتو په لاس راوړل
دی څرهغه عقلاً داسې تحلیل کړی چې
دتناقض څخه ګوښه پاتې سی. دی
داتوقع لري چې په همدې ترتیب به یې پای
کی دانسان، طبیعت او ماوراء الطبیعه
تشریح بریالی سی. لیکن د وجودیه دمذهب
پیروان احتیاج کوی چې د ژوندانه مهم
سوالو ته دسیاتنقیک معلوماتو او محض
تفکر څخه په استفاده سره جواب ور کو.
«پاته په ۲۵ مخ»

# پسرلنۍ

طبیعت کړی ګوتی بوری په سینګار خپل
پر سینه سینګادوی دغاړی هار خپل
زاروان په کړی کاروان په مشکو بار خپل
دی دا استوی نسیم لکه دو بیار خپل
په وبدو و بدو یخ د مسیحا کړی
د صبح په خیر په مړه کاندی را بورته
چی په خپو سترګو وګوری هر اوړته
بیا به وربی بلبلان د سمسور بڼ ته
خوږ به کیښیږدی د بلبلو شرو شورته
چی د سوی زړه اشمی په هرسبا کړی

د بهار چو به به زاوږی د اسی ساوی
چی ژوندی کړی په هر ګوټی غوټی می اوی
په سرو شولو به مسکی سی لکه ناوی
ورسره به وی د خوږو زړو دواوی
چی را ټګ به هر شی ته دب هوا کړی

بیا به وموجی سنبل په خپو عطر
بوراګان به پری ی په پری چتر چتر
ګل به مات کړی د امحرم بلبل ته ستر
د ژړاګو به له باغه سی زړه صبر
بلبلان به په خوځی د ګل ثنا کړی

د منه سو شال به و ګودی هوار ته
که یو حل په سترګو وګوری بهار ته
د زړه موسم لښکر به خوارق زار ته
په دی خپلو سترګو و بنی قرار ته
چی به تیښته او په منډه در ته شا کړی

«جرار»

## خلور ېځه

د غم روژ و کړم خاطر ملاله
د ب دی ښکاره کړه د عید هلاله
چی ثنا خوان شم د شکر لبو
اوس ترطوطی یم شیرین مقاله

«پیر محمد»



که ګر یوان د لبره چاک ښکاره کړی
د صوفی به کور خراب خاوری پرسر کړی

د زړه سر به یی تماشا کی سی له شوقه
العظمت ستاد صیقی ته که نظر کړی

(ط)

# نه دی!

ماوی و ګوره چی زړه می قلم نه دی
دې وې صبر کړه لایق د ملهم نه دی
ماوي کله به په ما مهر نظر کړې
دې وې قطع دی لاخیال د کرم نه دی
ماوي اورمی ستا د عشق پر زړه بلیږی

دې وې رنګه دی د بورا سره سم نه دی
ماوي بیامی ستا د لوری قسم وخوړه
دې وې هیڅ باور می ستا په قسم نه دی

ماوي قوم می (احمدین) طالب سیاح دی
دې وې کړې دی لاسیل د حرم نه دي

# د طبیعت افسون

طبیعت بیا افسون وکړ چې بې خاوره کړه ګلونه
د جنت شمال راولوت لري نوي پیغامونه
د آسمان آبي دریاب کې دوړ بېړۍ یې ورغله
ته وا رایي رڼه د سینې د ګوهرو امیلونه

بهار غلی د پسرلي ته نسترن کا ګل سینګار کړي
مجنون بید پر ملا کړه سره زلفې ځانګړې ولونه ولونه
په رابېل چمبیل کې جوړې ګهوارې سوې د بلبلو
د سحر نسیم ته ګوره ځانګوي بې حیالونه

د بورا به ویاړ ګلانو صف وهلی دی په باغ کې
د اورمځي به جڼه هسینه مچوي د دوی مخونه
مرواري به یې په څېر شبنم قطرې لوټلې دي په ګلو
که د سپینو مرغلرو یې په غاړه کړې هاره

پرخه ولوېده چمن کې رنګارنګه ځلېدل کا
سرې جاجې چې دي شوي د الماسو بارانونه
شوخ نسیم چې شکوفې کریوان ته لاس کړي
باقي باقي اوروي پر میناو ګل بلګونه

لکه ستوري چې اسمان کې جلوه کاندي
همې زیب کا شنه چمن کې د ګلانو سپین لاړونه
دا بهار دی که عطار دی نه یو هېږم
«چې د رنګ او بوی او پټې شاو خوا دي کاروانونه»

کوه و دښت کې مسیحا لکه چې پوه کړه
دوه مې څخه بې ښکاري چې دره کې کاږغونه
لاجوردي اتلس یې بیا په غرونو وغوړست
شنو غالیو باندې فرش سره سپین ځاګونه

د ریدي لړانګې له سره څه باد پورته
د غاټول زړه کې له و بره سو دا غونه
د شپانه شپېلۍ کې بیا سوز را پیدا سو
به نڅا یې کړه سېر لی و هي تو پونه

هره خوا تورې کېږدۍ د دښت کې خوړې دي
ته وا را غله د سکندر لښکر، فوجونه
طبیعت کې جنبش را غی وا بې با څه
موږ هغسې لا بېده بو کړو خو بره

(ك، ط)

# د زلفو تار

تار په تار چې په سپین مخ زلفې سنبل کا
په هر تار سره د زړونو بندول کا
د دعا په فانوس باد له یاده نسیم
چېر ته به چې ای شاغ د حسن ګل کا
سوز د عشق به ملاقات د آشنا زیات سي
بورا څکه د بهار پر ګلو شغل کا
ناز د ښکلو چې زهیر کړم په وصال کې
پر فراق به ای څوك څه رنګه تحمل کا
زه قربان سم تر غمزو د شیوه ګرو
چې بې تیغه د عاشقو قتلول کا
چې تر حسن تر جمال ای عمر کم دی
زړه به ښاد په هسې ګل څه رنګه بلبل کا
په موسم د شباب تېر پر «پیر محمد» شو
بوالهوس هنوز هوا د ګل و مل کا

## هنر او ادب

مرتب: (نصرت)

# د شنلو مې

څو بېخود د سرو شنلو په مې نه شم
په نظر د سرو سترګو سړی نه شم
د آشنا د مینې هسې مینځا نه دو
چې د بدن ارمانې د وسم تر تللی نه شم
چېرې نه چې له نظره شي دلبره
له دښته ی ومخ نه کتلی نه شم
په دربار د معشوقو کې نه قبلېږم
څو د خپلو آشنایانو پردی نه شم
په کوهي د زنخدان کې چې څوك پرېوځي
وایي دا چې ختی نه شم خفی نه شم
ته مې هله د روغجن په مینه بوله
که سپند غوندې تر تانه لوګی نه شم
که دې ایت د یاري وي تر ما به راسي
زه (حسین) به څکندن یم در تللی نه شم

(حسین)

# زموږ (ارټ) هم تقویه غواړي

د کندهار مجلې په لومړي ګڼه کې یعنې د ۱۳۳۹ کال دوري د میاشتې په ګڼه کې دالاندې مقاله خپره شوې ده چې موږ یې د مجلې د کالیزې د یادونې په برخه کې راوړو. دا مقاله چې د معروف لیکوال ښاغلي ترمیالي په قلم ده موضوع یې تر اوسه هم د توجه وړ ده.

د «ارټ» معنی ډېره پراخه ده او پر زیاتو شیانو دلالت کوي خو هغه دستې په دستي حاضره معنی

ئې دا ده چې له (ارټه) هغه مقصد غزلې، اتڼونه، ایښلې او نورې خبرې دي چې انسانانو د ژوند

تفریحي ضرورت په دوی تامین کړی دی.

(ارټ) د اولسونو په ژوند کې

ډېره مهمه برخه لري خو موږ د ژوند هغه د تېر تاریخ په جریان کې خپل زیات حیاتي مهمات له لاسه ور کړي

دي او په دې سلسله کې مو (ارټ) هم له خپله ذاتي رشده هغه پاته شوی دی؛ هغه اجتماعي حوادث چې

لاس پر لاس زموږ د حیاتي موجودیت له منځه کې وشتلي دي او هغه معاشرتي عوامل چې د ژوند د

فعالیت دوران ئې خورا محدود کړی دی نو کله چې زما تر مطالعې لاندې کېږي په هغه جمله کې دا واقعه په صراحت سره وینم چې زموږ د «ارټ»

له انکشاف سره هم لوی لوی دښمنې شوې دي او د ژوند د هغه «ارټ» فعالیت موثر ډېرو قشرونو لاندې محجور ل

شوی دی.

تاسې باور وکړئ چې د نورو اولسونو خوشحالې او د نشاط ډک ژوندونو

ته که له یوې خوا د اقتصادي تنظیمو پر اساس تامین شوی دی خو له بلې خوا د «ارټ» په وسیله هر کله د دوی حیاتي

ذوقونه موجود شوي او (ارټ) ئې سبب دی چې د ژوند فارغه ساعات ئې د وجد له لطیفو احساساتو سره یو ځای تېرېږي. لیکن

زموږ ژوند چې سر بېره پر نورو ودانیز روحي خوا یو ټکی هم لري او نا حقه خوا بدونو هم د ژوند په جریان کې اکثره

روڼ اخلاق او جذبې د اده چې زموږ «ارټ» یا په بل عبارت د ژوندون یو ډېر مهمه برخه الدرو او که چېري هم وي هغه په داسې شکل

له ده چې زموږ په ژوند کې د خوشحالۍ د پیدا کولو باعث وګرځي.

اوس چې زموږ د اجتماعي ژوند په وجود کې یو ارتقائي حرکت پیدا شوی دی نو له دې ژوند

سره مناسبه ایسي چې د اولس حیاتي ذوقونه د او ډېر کړه شي او ورته خپل هغه لازم موقعیت پرا برسي

چې د (ارټ) د انکشاف په وسیله مو په ژوند کې د ژوند تفریحي ذوقونه تامین شي.

تر کومې اندازې پورې چې په دې باب کې تصور کېږي نو البته د «ارټ» انکشاف زموږ

د مدنۍ کېدونکې ژوند په ساحه کې

دیو لازم کار حیثیت لري او
ادو مر و اجرا کیده دا څخه
خوانډی. خوددی کار اجرا او

تقویه‌په اوسني مرحله کي دوه
اړخه‌اري اوهغه دادی چی له
یوې خوا به دولت پوره زمینه

ورته‌مسا عدوي‌او له بلې خوا به
اولس ي له‌طبقاتي قیدو بسته څخه
خپل استعداد پراساس باندي په‌دی

کارکي کښون کړي. پدی ډول
کښې‌سه به نوخورا ژرو کړای‌شو
چي زموږ په‌او لسي ژوند کی له

کیفیت که بیداري به‌ډیره چټکی
سره دا وپا څي او تعمیم هم
پیدا کړي.

زموږ داو لسي «ادبي» په
سولواو پالکلو کی ښایی دهري
منطقي اوڅای خانګړو لري څه‌په

پیلو شرائطو حصه یکښي واخلی
خو په کندهار کي که ددي مهم
تامین‌خیال‌وساتل‌شي او په‌دی

ورو ستنی ترتیب به کار ژر وسرته
ورسیږي چي هغه‌داسی دي:
اوس په کندهار کو ډیرداسی

کسان‌سته‌چی‌شوقیانه غزلي وخت
تاوختيوانی‌خونه ددوی ارمان
په غزارختلی دی او نه کندهاری

څوانان‌ددوی له غزلو څخه څنګه
چي ښایی ګټي مستفید شوی
دي.

همدغه رنګه هغه اصلاحات
هیڅ‌له دی سرک چی دموسیقی‌به
آلاتو کي لازم ایده کیږي اوله
دهغو غزاوپه جوړولو او ویلو
کی‌لاس‌وهل شوی‌دی چی زموږ
د(ادبي) په انکشاف کی ترتیبول
ترهرڅه دمخه ډیر ضروری‌دي.

له‌دی قبیله‌ګرده خبری چی نه‌دی
شوی‌بو...همه‌وجه‌ګی‌داده چی زموږ
شوقیان دګولني څای نلري اوته

ددوی‌دا ګولیدو دپاره دچاپرلاس
ترتیب نیول‌شوی دی. که‌صرف
ددوی دپاره یوځای تهیه شی او

دانتظام دپاره ګی لی څه‌غم وخوړل
شی نو دا اطمینان پوره موجود
دی‌چی ښاغلی کندهاری شوقیان

به‌په‌شوقیانه‌ډول‌سره‌خپل «ادبي»
به‌لیږ وخت کی ونداسی اندازی ته
ورسوی چی یابه‌ګی‌ساري‌بیخی‌نه

پیدا کیږی او هم به‌ننداره کوونکی
له‌هري‌خوا څخه‌دونه پردامات‌شی
چی‌به‌شمیر به‌نه کښیږوزی. کم وخت

چی‌زموږ دشوقیانو دپاره له‌دی
قبیله‌ساده ترتیبات ونیول شی‌نو
بیخی به ادزانه ټکټ‌انو ننداره

کوونکوته موقع ورکول کیږي
چی دشوقیانو دکنسرتو څخه مستفید
شی‌او هغه‌عائدات‌چی په‌دی وسیله

پیدا کیږی هغه‌هم دمصارفو او
یاشوقیانوته‌دجائزو دپاره په کار
اچول کیږي‌نو په‌دي ترتیب سره

به‌زموږ (ادبي) ډیر تقویه شی او
تر ینګلي ژوند ګنډولی مخ به‌موږ
به‌خوږ پدلی بشاشت بدل‌شی.

ددا‌سی تاسیسا تو نتائج به
زموږ پر اجتماعي اخلاقو باندی‌هم
ډیر اثرونه‌چواي څکه‌اوس‌چي څوک
سپیان اوخنده‌کیان دوزی څوهغه
وخت به‌د یو هنري استعداد دروزلو تللو
سه‌وده‌لاډبیږی‌او دا هم په‌داسی حال کی
زیاته‌معقوله‌ده‌چی له‌یوی خوا دچرس

دوهي پرتهل کیږي‌او دسپو جنګ‌پر
بندیږی‌نو له بلي خوانی بیا هنری
موسسات‌پرمخ ورخلاصیږي.

دغه ډول مشاغل به نو زموږ
ژوند له ډیروچټي بیانو څخه خلاص
کړی اودیوه سړي ښه‌غزل به دسلو

خوشحالی‌تا میڅوي او د سلو تحسین
به دیوه هنري استعداد ور وروزی
پدی‌باب‌کې خو ډیری د ګټي

خبري موجود پدی خو د دی دپاره
چی‌په‌لږ بیان اکتفا وکړم نو پردغه
څای باندي نوری خبرې بس کوم

او بوازی‌دا‌قدر وایم:
کله چی شوقیان دا ډول شی‌او
د کنسرتو څای ور ته‌سرچته شي‌نو

ارمان به نه‌کوم‌چی به‌خپله دکندهاري
څوانانو په جمله کی‌ماته هم‌دون‌دا‌ووژي
چی یو څو ښتو لنډۍ دوایم.

---

هنري اصطلاح:

**پورتریت:** دا یو فرانسوی کلمه
ده‌چه په هنري ادب، یعني لیکوالی کښي
دانسان دخارجی جوړښت موډخیری
اوژستو او دهرتګوالی بیان او تفسیر
ته‌وایه شي.
کله کله‌دقهرمانانو دروحي خصوصیاتو
بیان ته‌هم وایه‌شي په‌دی فرق‌چی هغه)
داخلی پورتریت) بولی د کوم په‌چوکات
کښي چیرد پرسوناژدکرکتر او شخصیت
کایت او دده‌روحي او معنوی جهان تصور
شوی‌وي.

# ځوانان

تهیه کوونکی: رحمت الله «مړوند»

## د ځوانانو وظیفه د تولنې په وړاندې

زموږ د ژوندانه هره څوا او هرڅه په تېرزمانه. نظام کې تیاره وه او تور هم د تورتم لور ته روان

وه خو اوس د زیاتې خوښۍ او خوشحالۍ ځای دی چې د نوي نظام په رڼا کې هغه تیاره توره له منځه

تللې او هغه ظلمونه او پیرو کړاسې چې د ژوند او منسوخ نظام بقایا د پانه ده مخ په ورکېدو دی او

دربدرو خلکو پر زخمو باندې درمل ږدی.

په دې پوره باور لرو چې زموږ

خلک او ځوانان وکړای شول خپله کېنه کوم چې په تېر نظام کې د ظلمونو په قهرجن

دریاب کې مخ په ډوبېدو وه د دغه حالت څخه وژغوري.

اوس چې دا ځوان ولس نو پر موږ

ده چې د وطن دوستۍ، د احساس په ارلو سربېره د بشردوستۍ په مقصد یو ځل خپلو ځانونو ته ملتفت او د خپل

هیواد او لوړ دا او هم خپل درد وپېژنو او د هغه په ورکېدو کې تر حد زیات کوښښ وکړو ددې مقصد د سر

ته رسېدو لپاره لازمه ده ټول ځوانان

وال یو او بل ته په ګډه د همت لاس سره ورکړی او په ګډ کوښښ سره د خپل ګران هېواد هغه ویجاړی

سمی کړو کم چې زموږ جمهوری نظام د هغو د اصلاح د پاره په پراخو ملو ځاو شروع کړی ده.

پر موږ ده چې د خپلو وطنوالو د ژوند د سمون لپاره ټول په یوه اتحاد سره ودرېږو او د خپلو ملی

ارمانونو د ترسره کېدو او هېواد د زیات پرمختګ لپاره د هیڅ ډول سرښندنې څخه ځانونه ونه ژغورو او

د خپلو هېوادوالو او هېواد د خدمت لپاره چمتو واوسو. همدغه وخت دی چې خپل مسؤلیت او د اسپادل سوي

وظیفه په مو درک کړی او هغه مسؤلیت په مو چې د خپلې اولس په وړاندې لرو له اوږو څخه لیری کړی دی تر څو

د یو صادق او صالح ځوان په صفت مو خپل مسؤلیت د تاریخ په وړاندې خپلو د اتلو ونکو نسلونو ته سرته رسولی او د

راتلونکو نسلونو په وړاندې به کوم مسؤلیت ولرو.

---

## د ځوانی پلوشی

زموږ پښتانه ځوان خلک په پوره حماسو وختونو او داسی تاریخی ګړی بوکی چې

هیوادولو یو فدا کاریو ته ضرورت احساس کړی دی لاسونه سره ورکړی

او په قرانیزه او کلکه توګه یې په ملی جهاد پیل کړی او ځانونه یې بریالی ګرځولی

دی تو ان هم چې د هیواد د لوړتیا او

خلکو د هوساینې په لاره کې د کوشش د پاره یو دغسی حالت منځ ته راغلی او زموږ هیواد د تاریخ ددې حساس مرحلی

څخه تېر یږی باید ټول د خپلو وطن پالو نکو پلرونو په څیر خپلی ځانګړی ګټې، شخصی غرضونه ځانګانی، تفرقه

او بیلتون پرېږدو د جمهوریت تر لوا لاندې را ټول شو او هر څه د هیواد او خلکو تر چټکو ښیګڼو قربان

کړو.



لیکونکی: علي محمد «رسولي»

# ځوانان او سینما

د ډېرو ګڼو ځوانانو
سینما کېدای شي د یوې خوا د تفریح
وسیله ده او یا د اجتماعي او کورني
...فلمونو د حل او د رهنمایۍ په برخه
کې ډېر لارښوونکې ده خو د بلې خوا
باید د بدو او ناوړه فلمونو په ډېرو لو...
سره د ننداره کوونکو پر ذهنیتونو
باندې بد تأثیرات هم ښندي.

علمي، انتباهي، اجتماعي،
سیاسي، تاریخي او عشقي فلمونه
هر یو په ځان مورد کې کله کله
د ډېرو مؤثرو توقع کېږي. خو پولیسي
او جنایي فلمونو ته ورځ تر ورځې په
عامو محافلو کې خاصه توجه
ځانته جلب کړې ده. ځکه پولیسي
او جنایي فلمونه دي چې ورځ تر ورځ
یې په ځوانانو او کوچنیانو کې
واقعاً تأثیرات ایجاد کېږي.

منفي تأثیرات:

د پولیسي او جنایي فلمونو
ننداره ځوانان او کوچنیان د
اخلاقي فسادونو په لور ورکښوي
او د اخلاقي کمزورۍ او خوا ته
د ځوانانو د سوقولو په برخه کې
د یوه قوي مقناطیس رول
لوبوي.

نه یوازې پولیسي فلمونه بلکه
هر ډول فلمونه چې وي پر افکارو
باندې تأثیر لري. د یوه ښه
تربیوي، اجتماعي، تاریخي
یا انتباهي فلم څخه به ځوانان
د کوچنیانو د تربیې یا په ټولنه کې
د خلکو سره د تماس او یا هم
د اجتماعي ژوندانه په برخه کې
ډېرې ښې تجربې حاصلې کړي.

خو د ناوړه پولیسي عشقي او
جنایي فلمونو په لیدلو سره په ځوانانو
او خصوصاً وړوکو کې د ظلم او
بې رحمۍ روحیه راژوندۍ کېږي
او د یو څو صحنه سازیو د لیدلو په
نتیجه کې هغوی د ژوندانه پر پراخ
مسیر باندې خپله واقعي لاره
ورکوي.

ما خو څو ځله په خپلو سترګو
لیدلي دي چې ځینې هلکان په کوڅو
او یا هم په خپلو کورونو کې د فلمو
ځینې صحنې تمثیلوي او وایي چې
په فلاني فلم کې هلک چې غلا کوي
داسې ګرفتاره کېږي.... او بیا
هغه داسې ځان خلاصوي... داسې
پولیس وژني داسې نجلۍ تښتوي....
داسې او داسې......

کله چې دا کوچنیان لوییږي د
یوې خوا همدا فلمونه تعقیبوي او د بلې خوا
کورنۍ صحیح تربیه په بشپړه توګه نه وي نو
ورو ورو دوی هم تشویقیږي څو ګوم
چالونه چې یې د سینما له پردې څخه زده
کړي دي تطبیق کوي او د دې کار لپاره
حتماً په جنایتونو لاس پورې کوي او په دې
ډول په وروسته پاتې هېوادو کې زموږ
د ټولنې خوندي ایله ګرد او لوچکان
ځینې جوړیږي او په متمدنو او سرمایه
دارو ټولنو کې هم بدمعاشان او هیپیان
پیدا کېږي. نن ورځ د نړۍ ټولنه پېژندونکو
د ښوونې او روزنې متخصصینو دا ثابته
کړې ده چې جنایي او پولیسي فلمونه
ځوانان اجتماعي بې احتیاطیو، فسادونو
او اخلاقي انحرافاتو ته لمسوي، ځکه
نو باید د دې ډول فلمو مخنیوی وشي او
هم ځوانان دې ټکي ته متوجه کړل شي
چې د دې ډول فلمونو د لیدلو څخه هم ځانونه
وژغوري او هم خپل کوچنیان ځینې
راوګرځوي.

څو موده پخوا «نیویارک ټایمز»
لیکلي وه چې په «ایګل ووډ» کې یوې
اته ویشت کلنې ښځې چې د خپل زوی د
بې پروايۍ له کبله یې محکمې ته شکایت
هم کړی و «پاتې په ۳۰ مخ کې»



تهیه کوونکی : میرمن ملاله

# میندې باید خپلو کوچنیو لوڼو ته دکار موقع ورکړي

اکثراً په هغو کورنیو کې لیدل کیږي چې میندې وخپلو کوچنیو لوڼو ته موقع نه ورکوي چې په کورني چارو کې برخه واخلي او ددوی سره مرسته وکړي.

دا ډول میندې دا عقیده لري چې د نجونو دلاسه کوم کار سرته نه رسیږي. خوداسې نه ده باید هغوی دا لوڼو په پریوللو، جارو کولو دغذا د پخولو په پاکولو، په اخښلو

او همدغه رنګه په نورو کې برخه واخلي ممکنه ده چې یوه وړوکې نجلۍ په لومړي سر کې ددې کار د اجراء کولو دعهدې څخه ونه وزي. او لوی اشتباهات څینې پیښ سي

حتماً احتمال لري چې په لومړي قدم کې ددې ټولو کارو د سرته رسولو څخه عاجزه وي. مګر دا دمیندو وظیفه ده چې

په کرار کرار د کور د چارو په سرته رسولو کې موقع

ورکړي مشکلات او سختۍ ددوی په مخ هوارې کړي که کومه اشتباه څنې پیښه سي میندې باید ددې اشتباهاتو ته داغماض په سترګه وګوري.

او هر څومره زیات هڅه وکړي چې خپل ماشومان تشویق کړي او هغوی د کار څخه دلسرده نه کړي فرضاً یوه وړوکې نجلۍ چې د ۱۱ یا ۱۲ کلنو په حدودو کې عمر ولري بولوی اطاق په څرنګه چې شاید وبایدی جارو نه کړای شي. او یا لوښي په څرنګه چې دمور غواهیش او وی بری نه مینځلی په دې وخت کې

باید مور عصباني نه شي او هغه ترملامتیا لاندې ونه نیسي بلکه باید هڅه وکړي. ترڅو چې په سمه سینه او پراخ تندي هغه وخپلې اشتباه ته متوجه کړي ترڅو چې نوموړې نجلۍ د خپل ضعیفه ټکي ته متوجه سي څوددوهم ځلی لپاره هغه تکرار نه کړي. که برعکس مور ځپه قیافه غوده کړي. او یا هغه ووهي ددې احتمال شته چې نجلۍ دې روحاً متأثره سي. او نور ددې قطعاً د کور په چارو کې لاس ونه وهي.

دا کار ددې سبب کیږي چې په آینده کې دې نجلۍ د کور د کارو او د سرته رسولو څخه عاجزه پاته سي او ددې ناحیې څخه مشکلات حس کړي. پس میندو ته دا لازمه ده تر هغه ځایه چې ممکن وي د خپلو وړوکو لوڼو ته دا موقع ورکړي چې د کور په چارو کې برخه واخلي.

د نړۍ نامتو میرمنې :

# الکساندرا داوي دووا

الکساندرا داوي دووا یوه روسی شاعره ده چې نوم به ئې هیڅکله هېر نه شي. الکساندرا

هرنگه چې د سترگو څخه ئې ښکاریده په زړه کې ئې یو ښه غم درلود. او تل به په انزوا

او گوښه والي کې اوسیده. هیڅ ئې علاقه نه درلوده چې د چا سره وغږیږي. تر هغو چې به یوه اوږده

سفر کې د «فول کوسیکا مونه وي وا» او تروبسکایا په تعقیب سایبریا ته ولاړه. ښايي

دې دا سفر د خپل غم د غلطو لو لپاره غوره کړی و.

الکساندرا خپل کوچنیان

ئې سرپرسته پرېښوول. او په دې نسبت د خپلو اشنایانو تر سخت انتقاد او سرزنش لاندې راغله په

داسې حال کې چې دا یو هیڅ چې کوچنیانو ئې ورته سخت ضرورت لري. مگر نه ئې سوای کولای

چې د خپل عزم څخه، او د دې داسفر د هغه لپاره یو تیمبد بائه داسې تیمبد چې د هغه د خلاصون

لاره ئې نه سوای پیدا کولای.

د کوچنیانو لیری والی ئې هر وخت دا خورول. دې خپل دوست «لیترنوسکی ژور» ته ولیکل چې یو آن مې خپل کوچنیان نه هېرېږي د دوی طفلانه عشق او محبت به مې هیڅکله هم خپلې زړه څخه ونه وزي. هرنگه چې د لیونتوب مرحلې ته رسېدلې وم. مجبوره وم دا سفر وکړم. پوهیږم چې کوچنیان مې هم ما خواندي په تیمید کې ژوند کوي خو فعلاً ئې د لاسه څه نه کیږي. او لسم کال ئې څه لوی هم چې زما په زړه کې دې خاکو ته هرگند کړم خو مه نوی زما د سرزنش څخه لاس واخلي.

په ۱۸۵٦ کال کې د داوي دووا میړه له جهانه سترگې پټې کړې دې د میړه تر مرگ وروسته خپل کوچنیان سره را ټول او لویه کورنۍ ئې جوړه کړه چې د پخوا په نسبت د ماشومانو لپاره یو ښه مور شوه. دې د خپلو ماشومانو په تعلیم او تربیه کې یوه دقیقه هم غفلت نه او، تر هغو چې خپل اولادونه د هیواد او هیوادوالو لپاره وروزي.

د روسي مشهور کمپوزیتور پیتر و چې کوفسکي وروسته تر هغه چې الکساندرا ئې په پیژندل د دې په صفت اوږ کلمنی ئې اعتراف وکړ خو خپله خوړلې د دې داوز ژامنو د جملې څخه و یوه ته په نکاح کړه.

# دماشوم ورزش

طبیعت تندرسته او باصحته ماشوم

دې ته اړ بولي چې په خپلو پښو او لاسو ورزش وکړي. او په دې نسبت و خاصو

تمرینو ته احتیاج لري ځکه او د میندو وظیفه دا ده چې د ماشوم حرکات تنظیم کړي. د شیر خوره ماشوم ورزش ډېر ساده

دی او د هغه لپاره غوره ورزش دا دی چې هغه په ورځ کې څو واره پرنس پرې باسو تر هغو چې د شادمهري څخه کي ئې ټینگه شي.

البته دا ورزش په څلورمیاشتنی کې دی په ۹ میاشتنی کې ماشوم هڅه کوي چې د یو ال یا کـــومی بلی تکیه گاه په مرسته د یو ځای څخه بل ځای

ته حرکت وکړي. په دې وخت کې دې چې ماشوم پر څلورو څې ښه لاره به داوي چې د هغه لپاره یوه څلور کونجه پنجره چې

ماشوم وکولای شي آزادانه پکښې حرکت وکړي جوړه کړو. تر هغو چې د اور او نورو خطرونو څخه ساتلی وي. په

دې دوره کې باید ماشوم مجبور نه کړو شو چې ودرېږي. ځکه ممکنه ده چې د پښو هډوکي ئې کاږه سي ځکه کله چې دوی نه

قوت بنې دولاړې قدرت پیدا کړي ي ښپله پر پښو ودرېږي او دا عموماً په ينځلس میاشتنی کې صورت مومي په دې سن کې د ماشوم لپاره تر ټولو ښه ورزش پر پښو تگ دی.

(د ۱۳ مخ پاته)

# دنطاقۍ د هنر د زده کړې...

فشار داوعیه دنطاقي د ضروریاتو څخه دی. دلته یوه بله نکته د یادولو وړ ده او هغه دا ده چې

د آواز تون یو طبیعي کار دی او د مشق او تمرین په سبب ډېر لږ تغییر پیدا کوي. یعنې د آواز تون

د اعصابو د کنټرول بر عکس پروډېټ او تربیه نه قبلوي او په هغه خپل طبیعي حالت پاتې کیږي

پس هغه کسان چې د آواز د تون په خرابۍ مبتلادي آوازونه یې ګیرا او موثر نه وي چه دا ده چې د خبرو

په وخت کې کرار کرار خبرې وکړي او د خبرو تر پایه پورې د هغه موازنه وساتي.

٤- دلاس، اوږو، ورغو، سر او د تندي حرکتونه هم هغه عوامل دي چې د نطاقۍ په هنر کې

موثر رول لري. او دغه عوامل په حقیقت کې د کلمو او جملو مرستیالان دي. او ویونکی

مکلف دی چې د نطاقۍ په وخت کې د هغو څخه استفاده وکړي او په هغو ځایو کې چې ایجابوي یې

هغه تطبیق کي لیکن په دغه عمل کې افراط د موضوع قیمت او د نطاق اهمیت د منځه څخه وړي. او ضمناً په دې وخت کې د اوریدونکو

بې علاقه ګي هم څرګندیږي.

سر ېېره پر دې بې مورده حرکتونه چې د جملو او کلمو سره

انطباق پیدا نه کي تر زیاتې اندازې پورې بد ایسي او په اوریدونکو باندې تر زیاتې

اندازې پورې منفي تاثیر چندي.

دلاس، اوږو، ورغو او تندي حرکتونه او چوړول ډېر مشکل

دي. او دغه کار زیات دقت غواړي او په دغه برخه کې لږ بې پروایي د موضوع ټول خوند له منځه

وړي او د بولنکي سپکوي. په حقیقت کې د غړو حرکتونه د نطاقۍ د نورو ټولو عواملو په شان حساسیت نه

لري. د منطق ضعف، د اعصابو د نه کنټرول او د ویلو د موضوع خرابوالی او د دغه په شان نور

شیان که څه هم د نطاقۍ د هنر د عیبو او څخه شمېرل کیږي او ښایي د اوریدونکو بې علاقه ګي منځ

ته راوړي لیکن د بې مورده بې ځایه او نامناسبه حرکتونو په شان بد تاثیر په اوریدونکو باندې نه کوي.

دا په یادولو لري چې د نطاق د هنر تر ټولو

اړخونو اهمیت لري. د هغو تطبیق او عملي کول ډېر زیات مراقبت غواړي ځکه ډېر امکانات لري چې دلاس سر، ورغو، تندي بې مورده او نامناسبه حرکتونه د بولنکي د تحقیر، سپکتیا سبب ګرځي او په اوریدونکي کې هرج ومرج پیدا کوي.

## دخبرو پای ته رسول:

دخبرو پای ته رسول هم یو ځانګړی هنر دی او زیات معلومات او تجربې ته احتیاج لري. دداسې یو دمکرفون ترشاه

خبرې کول او یوې غونډې ته خبرې کول دافرق لري چې دداسې یو خبرې کوونکی په ابتدا کې د یو لږ مشکلاتو سره مخامخ کیږي او د لومړیو جملو د بیانولو څخه

لږ نا آرامه کیږي. لیکن دخبرو په پای کې د هیڅ ډول ممانعت سره نه مخامخ کیږي

ځکه اوریدونکي په خپل مقابل کې نه وینې او دا نه وینې چې دده د وروستیو خبرو اوریدونکي کوم حالت ته رسولي دي.

ده ته دا کار کوم تفاوت نه لري او هم داوریدونکو څرنګوالی په اعصابو باندې تاثیر نه کوي.

لیکن برعکس هغه خبرې چې●

دیوې قولې به حضور کې کیږي ځیرې سختې دي او ویوانکی دیوه پرابلم سره چې په حقیقت کې لکه دخبرو شروع کول د یوالېزیا تو- مشکلاتو سره مخامخ کیږي په دغه وخت کې ویوانکی دیوه میلمه په شان دي چې نه پوهیږي په څه ډول په مؤدبانه ډول د کور څښتن څخه رخصت واخلي که دمخه د دغه پرابلم حل کیدو ته ځان چمتو نه کې او د خبرو د پای ته رسیدو جملې یې په خپل ذهن کې نه وي جوړې کړې

هغه وخت نو بې لزومه او د موضوع څخه د باندې خبرې څېنې کیږي او د خبرو د پای ته رسیدو لاره نه سي پیدا کولای.

پس د نطاقی هنر دا امر کوي چې ویوانکی لکه څرنګه چې د خبرو د شروع کیدو د پاره حضارات نیسي او لکه څرنګه چې د خپلو اعصابو د کنترول د پاره مشق او تمرین کوي په هم هغه صورت د خبرو د پای ته رسیدو د پاره دې هم مؤثره جملې ترتیب او د هغو په ویلو سره- دې خپلې خبرې پای ته ورسوي.

یوه د هغو لارو څخه چې خبرې په مؤثره توګه پای ته رسوي دا ده چې ویوانکی باید ویل سوي مطالب یو ځل بیا په خلص ډول سره بیان کې. د دغه روش څخه دوه اساسي مطلبه اخیستل کیږي.

یو دا چې خبرې په جالب ډول بیله کوم مشکل څخه سر ته رسیږي بل دا چې موضوع یو ځل بیا په خلاص ډول سره د اوریدونکو په ذهن کې تازه کیږي او هغه مطلب چې ویوانکی یې په نظر کې لري په جالب ډول مؤثریت پیدا کوي.

هغه وخت چې ویوانکی خبرې پای ته رسوي او اوریدونکي په ډیر میل او آرزو سره د خبرو د پای ته رسیدو سره دلچسپي او علاقه ښکاره کوي. او دا انتظار لري چې د ویلو څخه یوه نتیجه لاس ته راوړي.

هم دغه ځای دی چې ویوانکی دیوه نوي پرابلم سره مخامخ کیږي.

که د مخه احضارات ونیول سي په ډیر زیرک ډول د اوریدونکو په ذهن کې ښه اثر ښندي.

په پای کې د نطاقی د هنر اساسي نکات دلته داسې خلاصه کوو.

۱- د بیانولو موضوع باید ښه تحلیل کړا او په هغه باندې باید مطلق حاکمیت تامین کړ.

۲- د موضوع اساس او مهم نکات باید په جلا ډول یادداښت کې.

۳- د خبرو په وخت کې باید همیشه درست ودریږي او یوه خندانه څېره باید ولري.

٤- خپلې خبرې په ډیره آرامي او پوره متانت سره شروع کړي.

۵- د نا مطلوبه او بې مورده حرکتونو څخه باید ځان وژغوري.

۶- کوښښ وکړي خپلې خبرې په مطلوب ډول پای ته ورسوي.

(د ۱۵۵ مخ پاته)

# د وجودیه و...

وجودیه مذهب موږ اساسي او دروني پرابلمونو ته متوجه کوي.

او تر ټولو مهم دا چې هر متفکر فرد نشو یقیني دغو پرابلمونو سره تر هغه وخته پورې پنجه نرمه کړي چې دا ذات په اصالت بریالی سي.

اګزیستانسلوم د نظري لارې څخه دا رادې د لارې د (حقیقت) د پوهیدو او د شخصي (حقیقت په قبضه کې دا وستلو) ترمنځ فرق ته قایل وي. پاسکال عقیده لري چې په خپله حقیقت هغو مره مهم نه دی لکن د تلقي طرز د هغه په باب زیات اهمیت لري.

کرکیګارد او جاسپرز هم دغه نکته تأییدوي او وایي چې د پوهې حاصلول بیله دروني طرز تلقي څخه بیهوده او عبث دي. هغه دانش او پوهه چې د متفکر شخصیت متاثره کوي خطرناک دي. دانش او پوهه هغه وخت ګټور دي چې د مافی الضمیر په تنویر او تغییر کې برخه واخلي.

---

# د لویانو خبرې

خندا د ژوندانه سره د جګړې ډیره ښه وسیله ده.

(بیکن)

ځواني د لیونتوب یوه څانګه ده.

(مادام دواشتال)

عام تواضع د اولی او جهالت د کبر او غرور منشا ده.

(بوعلی سینا)

دسوسیولوژۍ دبحثونو په لړ کې

دغفار «خوار یکښ» لیکنه

# مادي تولید د اجتماعي تکامل بنسټ دی

د انسانی ټولنې تاریخ دخپل مضمون له مخې د یو له بل و اقتصادي او اجتماعي شکلونو چې فرماسیون یا جوړښت نومېږي د پرله پسې والي او تسلسل تاریخ دی.

موږ به د یو له بل و اقتصادي او اجتماعي جوړښتونو د شکلونو په باب برخپل ځای و غږېږو یعنې غواړو د دغه ټکي یادونه وکړو چې د هر فورماسیون مادي او اقتصادي بنسټ د اجتماعي ژوندانه د تولید او تجدید تولید طرز د مترقي ټولنې پېژندنې یوه مهمه مقوله ده چې پخپله د دوو برخو څخه مرکبه ده.

۱- تولیدي قواوې.

۲- تولیدي مناسبات

۱- تولیدي قواوې څه شی دي؟

«تولیدي قواوې د طبیعت سره د انسان د رابطې ښکاره ندوی دي او هغه قوتونه دي چې د مادي شتمنیو په تولید کې ګډون لري» لکه د تولید وسایل (افزار، تولیدي موسسې سړکونه د حمل و نقل وسایل) او هغه انسان چې دغه په تولیدي فعالیت کې په کار اچوي او تکمیلوي یې (لکه صنعتي کارګران، بزګران تکنیشنان، مهندسین او هغه پوهان چې د تولید د پراختیا په تخنیک اګاه وي.)

دا چې انسانان د تولید د هر ډول وسایلو یا د هر ډول تخنیک سره سروکار لري، طبیعت سره د انسان د رابطې او پر طبیعت د ده د تسلط د درجې څېر ښه ښکاروندوی دی. د کار افزار د ټولنې مادي، فني بنسټ دی له هغه ځایه چې افزار او تخنیک بې له انسان څخه مړه او بې تاثیره دي نو ځکه په تولیدي قواوو کې ټاکونکی عنصر او د تولید اساسي قوه پخپله انسان دی.

۲- تولیدي مناسبات څه شی دي؟

تولیدي مناسبات هغه مناسبات دي چې انسانان د مادي شتمنیو د تولید په جریان کې هغه ته ننوځي، او د انسانانو ترمنځ د هغه ډول ډول مناسباتو سیستم دی چې په ټاکلي تولیدي طرز کې د مالکیت شکل د اجتماعي طبقو او قشرونو وضع په بر کې نیسي لکه د مالکیت مبادلې او توزیع په جریان کې د انسانانو رابطه، پخپله د تولیدونکو ترمنځ اړیکې، د اجتماعي کار د ویش مسئله. د یوه مشهور پوه په عقیده هر تولید په ټاکلي اجتماعي شکل کې او د هغه اجتماعي شکل په وسیله د انسان له خوا د مادي شتمنیو ایجاد دی. خو دغه تولیدي مناسبات پر دوه ډوله دي.

۱- د مرستې او همکارۍ مناسبات.

۲- د حاکمیت او تبعیت مناسبات

دغه دوه خصلته د تولید د افزارو او وسایلو په نسبت د انسانانو په مناسباتو اړه لري. که انسانان په ګډه او یوځای توګه (کلکتیف) د تولید د افزارو او وسایلو څښتنان وي او د یوې ګډې کورنۍ په توګه ورونډ وکړي د دوی مناسبات حتماً د مرستې او همکارۍ مناسبات دي. خو که د ټولنې یوه برخه د تولید د وسایلو څښتنه وي او بله برخه د هغه څخه محرومه وي حتماً لومړۍ برخه د دغه بلې برخې د ځان تابع کوي او لوټوالی غواړي. انسانان د خپل ژوندانه د ضروري شرایطو د ایجاد د پاره مجبوراً وداسې مناسباتو ته ننوځي چې د دوی

«پاته په ۳۰ مخ کې»

د سردارشاه ترجمه او څیړنه

# مارکوپولو د چین د خاقان په دربار کې

## دده د سفر سرې توري او د افغانستان څخه د تیریدو په وخت کې د هغه خاطرات

(دریمه برخه)

چې د هغه وخت د احترام علامه وه.

د اختر په ورځو کښې به ډیر خلک تر عادي وخت ودربار ته دعوت کیدل چې تعداد به ئې ۱۲ زره کسو ته هم رسیده. ددې هر نفر لپاره به قوبلای خان څه لباس او موزې برابروای.

چې لباس به ئې په سرو زرو مرصع سوی وه او کمربند به ئې بالکل د سرو زرو څخه جوړ سوی وه. چې هغه لباسو ته د نن ورځې د (لس زرو پونډو) قیمت درلود یعنې یو هجوړه کالي ئې د دومره ارزښ درلودنکي وه.

په دربار کښې هر میلمه د معاشرت د اداب او احترام کاوه نظم او دسپلین بالکل برقرار وو

ټول خلک به پوشان او پورتنګه وه. په دربار کې به راز راز نمایشونه او بازۍ کېدلې چې د هنري بازۍ او نمایش فکر پښیله ویونکی وهلاې سړی چې څومره به ښکلای او حیرت آورده وه.

دخاقان (قوبلای خان) په دربار او مملکت کښې هر څه غیر عادي وه.

قوبلای خان په اداري وضع ډیر ښه پوهیدی. ددې په وخت کښې د مملکت نظم ونسق د نن ورځې د

او یو مملکت په شان وو. صنعت او هنر ډیبات پر مخ تګ کړی وو، قوبلای خان علاوه پر دې چې سکه

ئې په خپل نامه درلوده د نن ورځې په شان ئې کاغذي نوټونه چاپ کړي وه او د پیسو لپاره ئې طلا پښتوانه

ځا کلې وه. د شیانو نرخ به ثابت وو او مامورینو ئې به کافي اندازه معاشونه درلودل. په ښارو کښې

وضع ډېره سمه وه — یعنې په هغه وخت کښې ئې ښه ښه ــ ی کوڅې، لیارې مسافرخانې او د ا ـ ی نور د هوسایې

وسایل درلودل.

پیکینګ په هغه وخت کښې ډیر لوی ښار وو چې مساحت ئې ۲۰ میله

مربع ته رسیدی پوسته او ارتباط ډیر منظم وه هرچا کولای شوای د پوستې له لیارې حیثي خابوته

لیکونه واستوي.

قوبلای خان د چین د اباد ولو لپاره ډیر زحمت وایسته او ډیر کارونه ئې وکړل.

ددې په وخت کښې خفیه کسان موجود وه چې هر راز حالات به ئې هره ورځ د امپراطور تر غوږه پورې رسول.

قوبلای خان پخپله د ملک اداري

چارې د چینائیانو پلاس ته ورکولې یعنې د هغه وخت ډیر لوی آمرین عیني عربي او یا د آسیا د نورو ځایو خلک وه چې

د چین ته راغلي وه او د امپراطور د اعتبار وړ ګرځیدلي وه. ددې کار علت دا وو چې اغتشاش به هیڅ نه پیښیدی. او دا ددې

د لوې فکر نتیجه وه چې دده د مرګ تر وخت پورې دده په مقابل کښې څوک ونه دریدل.

دقوبلاې خان عسکري قدرت هم ډیر پراخ وو چې حتی یوازې ئې د سپرو عسکرو شمیر په سلونو زرو ته وه.

لنډه دا چې د خاقان دخان هر څه غیر عادي وه چې دلته به دویونکو لپاره دده د ښکار یو باره کښې چې هغه هم په

بو ځیری ها دي ډول وو څه ولیکو:

مارکوپولو د قوبلای خان د ښکار په باره کښې چې دده لپاره ډېره په زړه پورې وه داسې تشریح ورکړېده:

قوبلای خان به په هر حال کښې د سپټمبر د میاشتې څخه د فبروري تر میاشتې پورې په یوه اوږده سفر د چین د جنوب ختیځ د خواته تللی چې په ضمن کښې به ئې ښکار هم کاوه.

قوبلای خان د خپل ښکار لپاره د هغه وخت ډېر وسایل درلودل چې د هغو څخه سپیان، تازیان، پړانګان او بازان وه چې په دوی به ئې ښکار کاوه که څه هم د پړانګ تربیه څه آسانه کار نه وو مګر بیا هم دوی په ډېر زحمت هغوی روزل څو په ښکار کښې ور څخه ګټه واخلی.

امپراطور خاقان به د دغو حیواناتو په وسیله ځینې نور حیوانات لکه ځینې مرغان ګیدړې، چقالان، پسونه، وحشي ګوزن، ګاوینې او ځینې نور لوی حیوانات ښکارول.

وختی چې به قوبلای خان په ښکار تللی دده د ورسره نفرو شمیر به په زرونو کسو ته رسیدی

لکه چې مارکوپولو وائی یوازې د ځینو شمیر به لسو زرو دانو ته رسیدی. په دې ښکار کښې به یوازې تازیان پنځه زره دانې وه چې په یوه قطار به روان وه او هر ډول حیوان چې به په مخه ور تللی بیا به ئې د نجات لاره ورته نه وه او فوراً به تازیانو حمله پر کوله څو حتماً به ئې ونیوی.

خاقان به په خپله پر فیل باندې سپور وو چې په سروزرو به نقاشي شوی وو او نور لوراکین به ئې پر ځنګ پر ښو او یا سپاره ورسره تلل.

پړانګان به ئې په ځینو سرپټو ګاډیو کښې راوړل چې په مجردی به ئې کوم لوی ښکار چې د تازیانو او سپیانو تر عهدې ونه وتلی وو ولیدی نو به ئې پړانګان راوایستل او د هغو د نیولو لپاره به ئې وګمارل.

د عقاب ښکار ئې هم د لیدو وړ وو کله چې به ئې عقاب و کړم ښکار ته وګماره څه به هم سمدستي هغه ښکار په خپلو منګولو کې ونیوی او وژلو نه به ئې د هغه پر سترګو نیول څو لاره ونه وینی چې په دې ترتیب به نو روغ او ژوندی حیوان د خان او د هغه د لښکرو به لاس ورتی.

کله چې به ئې د استراحت وخت نژدې شو سمدستي به لس زره خیمې به وهل شوی چې د خیمو تولی د سیانی به د وریښمو څخه جوړې شوی وی د خیمو داننی برخه به په ډول ډول غالیو فرش شول.

د خان هغه نفر چې به ده سره په ښکار کښې ملګری و: نو یو بالاپوښ ورکول کیدی چې د پړانګ او یا د قاقم د پوست څخه به جوړ شوی وو، چې په هغه وخت کښې د هر پوست قیمت یو زر طلاوی وو چې د ټولو بالاپوښو قیمتونه به نو تر حساب وتلی وو.

په دې ښکار کښې به سازونه او سپورتي نمایشات هم چالان وو په داسې ډول چې صفت ئې په قلم نه کیږي لنډه دا چې ویونکی د خان د ښکار څخه د احدسی وهلای شی چې واقعیت په هغه وخت کښې څرنګه وو.

خو دا باید ومنو چې د خاقان په سویه ژوندانه هیڅ امپراطور نه دی کړی.

## دیوتن ښار د لیدو لپاره د مارکوپولو سفر

دلته په د مغولی امپراطورانو باید په اصطلاح د خاقانانو ودادی وضع په باره کښې څه ووایو. چې خاقانانو څرنګه چې نه شوای کولای د خپل هیواد له هری برخی څخه شخصاً لیدنه وکړی څکه ئې نو ددې کار د اجرا لپاره د اعتماد وړ ملګری درلودل چې د هغوی په وسیله به ئې د هیواد د هری نقطی څخه معلومات په لاس راوړل.

دا مامورین به ئې ددې لپاره و ډېرو لیرو نقطو ته استول څو چې د خلکو وضعیت د نژدې څخه وویني او د حاکمانو رفتار د خلکو سره وګوري. نو هر ډول معلومات چې به ئې قوبلای خان ته راوړه بیا به نو قوبلای خان هغه حاکم ته مجازات او یا به هم مکافات ورکول خو لنډه دا چې مارکوپولو یی هم ددې کار لپاره وګماره: څکه چې دی د امپراطور د ډېرو معتمدو او نژدې دوستانو څخه شمېرل کیده، څو هغه وو چې مارکوپولو ئې د دیوتان د ښار د لیدو لپاره واستوی

اود اما مورډیت نیوړ کې چې هغه
های د نږدې هغه وگوري. د یونان
ښار د پیکینګ اود ننوړ ځی

(د کمنګ) دښارو تر منځ
پروت وو ـ اود دې ښارو تر منځ یوه
شاهراه او د مارکوپولو د خپلو

ملګرو سره د آس په سپرلۍ پر دغه لار
روان شول او دوړ ځی په آس ۲۵ میله
لار طی کول چې په دې حساب او

باید په ورځ نیمو میاشتو کې وخپل
مطلوب ځای ته رسیدلی وای
خو ځرنګه چې مارکوپولو هر ځای

توقف کاوه او هغه وجه وه چې
پسله څلورو میاشتو وهغه ځای ته ور
سیدل دغه شاهراه چې پر هر طرف ئې

د چین ډیر د اقوسو نه ډکې ځمکې
پرتې وې ځکه پښوا ئې آبادو او
تمدن ددې لیاری په شاو خوا کښې

په لیدل کیدل ـ ځرنګه چې دې د
خاقان شخصی کمیشنرو و نو په هر ـ
ځای کښې به ئې عزت کیده او د نوی

منطقو او ځایو د لیدو لپاره به شرایط
چمتو ته آماده وه ـ مارکوپولو به دی
لیاره کښې یوه ښې ته اشاره کې یده

هغه دا چې ده په دی لیاری کښې یعنې
د پیکینګ د ښاره هغه اس میله
لیری د رود پر غاړه یو ډیر ښایسته

پل لیدلی دی چې د ډیر روښا یسته او
لویو پلونو څخه شمیرل کیدی دا
پل چې د (هون هو) پر رود باندی

آبادشوی دی په هغه وخت کښې عرض
په دی اندازه وو چې که لس ژوره
ته څنګ پر څنګ باندی سره
دریدلی وای لاهم ددی پله عرض

ور باندی لوی وو ددی پله پر سر باندی
د ډمر یانو او هیخو نو د و حیوانا تو
مجسمی لیدل کیدې تو موږ ی پل

په داسی سقم جوړ شوی وو چې که
به کوم قافله ور باندی تیریدل او
پل به دغه رپه چوڼ پوړ ته او کښته

کیدی. دپله په ځا خواد (چو چاو) ښار
پروت وو چې د ښا یست څخه ئې لیدو ـ
نکی حیرانیدل. پدې ښار کی نو ـ

موږ ی شاهراه څخه دوی اوری لاری
جلا کیدی چې یوه ئې د چین د جنوب
او بله ئې د غرب و خوا ته تلل. خو

مار کوپولو د غرب خوا ته ولاړه.
مار کوپولو سره له خپلو ملګرو
ورو سته له لس ورځی د (پو تنګ ـ

چنګ) او (تای یون) وښا رو ته
ورسیدل چې ښا یسته عمار تو نه
او هو ټلونه ئې درلو دل اود هغه

ځای څخه ورو سته له یوی هفتې د
(پنګ یانګ) وښاراني او مشهور
ښار ته ور سیدل ددی ښا ر څخه

تقریباً ۲۵ میله لیری مار کو پولو د
ژیړ رود ته ور سیدی چې پر دی رود
ډیر پراخوالی لرلو. پل نه شو

جوړ پدلای خو مار کو پولو له دی
رود نه هم تیرشو او د (چا کان)
وښاروانی ښار ته ور سیدل ـ چې دهغه

وخت د ښځې ښا یسته ښار و څخه وو.
دهر چوڼ یار کو، باغو، هو ټلو او
تعمیراتو در لوونکی وو. او هلته

دقو بلای خان زوی (منګلی) حکومت
کاوه ـ مار کو پو لو دهغه سره دهغه
په قصر کښې ولیدل چې ټول قصر ئې
په رنګ و روغن او طلا باندی ښا ـ

یسته. شوی وو یعنې قصر ئې په دی اندازه
ښکلی وو چې مار کو پولو دهغه په شان
پل ښکلا قصر نه وو لیدلی.

مار کو پولو داته دقوبلای خان
د توصیې سره سم ښاری وضع مطالعه
کړه او ور ته معلومه شوه چې په دی

ښار کښې امنیت او انتظام پیښی سم
وو او ټوله خلک خوښ او خوشحاله وه.
مار کو پولو ددی ښار د لیدو نه

ورو سته «شنسی» دولایت له لاری
و (ژیچان) ته روان شو او دده داصلی
هدف یعنې د (یونن) د ښار څخه ئې ژرمیله

فاصله د لودل. دده ددی لاری په اوږدو
کښې د (هان چنګ) ښار ته ور سیدی ځکه
چې لار ئې ډیر ه غر ه ایبه وه ددی ځای ټول

خلک به په بزګری اخته وه که څه هم خلک
ئې ټول غریب کاره. پیا هم ددی ښار
په شاو خوا کښې مجلل قصرو نه لیدل کیده

مار کو پولو ددی ښار د لیدو نه وروسته
د (یا چاو) ښار ته ور سیدی او هغه لاره
چې ددی ښار ته تللی وه ټوله ځنګلی وه

یعنې ټوله لاره د بانس په درختو باندې
پوښل شوی وه ـ ځرنګه چې له یوی خوا
په دی لاره کښې پیا نګان ډیر وه او د

بلې خوا بانس د لرګو په اکثراً او د
اغیست چې ډیر خطر لرا کسه
صحنې به ئې تشکیلول څو مار کو پولو

ئې دی ته کړی چې باید په دی منطقه
کښې اوږد پاتې نه شی او ژر ځان د
(یا چاو) ښار ته ورسوی. کله چې

مار کو پولو ددی سرحدی ښار ته
ور سیدی وئې لیدل چې خلک ئې
اکثراً د حشی دی او هری قبیلی

«باقي په ۳۸ مخ کې»

(د ۲۱۵ مخ پاتې)

# ځوانان او...

دخپل ژوند په زوړ اثر وو ژل
سوه.
ونو کې قاتل د محکمې د یوه
سوال په جواب کې وویل:
ما له خو ښکل چه خپله مور د
وژنم خو ما یوازې د هغې صحنې
تقلید کاوه کوم چه د سینما پر پرده
مې لیدلې وه.
واقعاً هم داسې ده.

د دې ډول فلمونو خپریدو په
نتیجه کې بیله دې چه د څو تنو
کیډې مړې سي بله کومه ګټه
نلري. په لویدیځه نړۍ کې فلمونه
څو څو چنده تلویزیون د پردو څخه
لا هم د جنایي او پولیسي نمایشاتو
د اجراء د پاره استفاده کیږي. په
دې کار کې بیا لیګه هغوی خپل
مقصد ولري چې خو اوس د نړۍ ټولنه
پیژندونکي دې ځکه ته متوجه
سویدي او د دې لپاره چه ځوانان
د دې ډول فلمونو د لیدلو څخه
ډډه وکړي بولې تبلیغات شروع
کړیدي.
د یونسکو موسسې په دې باب
یو لوی احصائیه خپره کړیده
چه داسې لیکي:
اوس په امریکا کې د منحرفو
ځوانانو او پېغلو څخه په سلو کې
لس اوسلو کې ۲۵ د جنایي فلمونو
د لیدلو په نتیجه کې جنایتونو ته
تشویق سویدي.
په سلو کې ۴۹ ځوانان د فلمو
د لیدلو په نتیجه کې تشویق سوي-
دي چې وسلې وګرځوي، په سلو-
کې ۴۵ ځوانانو د همدې ډول
فلمو د لیدلو په نتیجه کې په غلا
لاس پورې کړیدی، په سلو کې
۲۰ تنو د دغو فلمو د لیدلو په نتیجه
کې د فاسدو اخلاقو رواجولو ته
زړه ښه کړیدی.
همدا رنګه په سلو کې ۲۵ تنې
پېغلانې د جنایي فلمو د لیدلو په
نتیجه کې بدنامې سویدي او خپل
شرافتمند ژوندانې د لاسه ورکړیدي
په سلو کې ۲۹ تنو میرمنو د سینمایي
لوبغاړو د تقلید کولو په اثر
نامشروع عشق پالنه شروع
کړیده.
په دې باب د یونسکو موسسې
د (ځوانانو او سینما) په نامه
یو کتاب هم خپور کړی دی
او په هغه کې ئې د پولیسي فلمو او
تلویزیوني نمایشاتو په باب د نړۍ
د ځوانانو خاصه پاملرنه غوښتې ده.
ډیرو ګرانو ملګرو او ځوانانو!
راسۍ چې سره یو ځای هم د سینمایي
پروګرامونو او فلمونو په برخه کې
پوښته تصنیف وکړو او د هر ډول فلمونو په
لیدلو سره د یوې خوا خپل وخت تلف
نکړو او د بلې خوا خپل اقتصاد ته زیان
ونه رسوو او همدا رنګه د ځوان نسل
(کوچنیانو) راتلونکي ژوند هم په نظر
کې ونیسو او هغوی د داډول مضرو فلمو
و لیدلو ته تشویق نکړو، ځکه په دې
وسیله مو د خپلې خوارې ودې ټولنې
د اصلاح په برخه کې یو مقدماتي ګام
ایښی وي.

---

(د ۲۶۵ مخ پاتې)

# دمادي تولید...

پراداره پورې اړه نلري. بلکه په دیر
اړه لري چې څرنګه ئې تولیدي قواوې
په لاس کې دي.
د تولیدي قواؤ او تولیدي
مناسباتو ترمنځ ډیالکتیکي رابطه هم
په همدغه ورو ستې مهم ځکې کې ده.
تولیدي قواوې او تولیدي مناسبات باید
یو د بل سره همآهنګه وي که چیرې دغه
مناسبات د تولیدي قواو د تکامل څخه
سي ټولنه د بحران او اوږده دوران ته
داخلیږي ترڅو چې بیا هماهنګي منځ ته
راشي.

(د پښتنی ددوهم مخ پاته)

# دکندهار مجله...

دمساعدت په برکت د تحول او شکوفانی پر لور روان دی څو نه چی د یوی خوا دجمهوریت انقلاب وسالمو مطبوعاتو ته دفعالیت زمینه برابروی او په هغه اندازه سالم مطبوعات دجمهوری نظام داستحکام او بقا په لار کی فعال سهم اودول لری.

په دغسی یوه حلانده دوره کی موږ د کندهار دمجلی د تاسیس څورلسمه کالیزه لمانځو او په دې باور لرو چی دد غی مجلی څېروتی دخپل ملی نظام له پاره په ژړه پوری ارزښتونه لری.

په هیواد کی دجمهوری نظام د تاسیس سره لکه دهیواد په نورو مطبوعاتو کی چی هرکند تحول راغلی دی او دکندهار مجله هم په خپل وار دد قه تحول څخه غنی او مستفیده شویده.

دامهال چی د کندهار دمجلی څورلسمه کالیزه لمانځو نومناسبه بولو چی ددغی مجلی دموسس شاغلی ولی ژلمی خدمت وستایو او دهغو لیکوالو څخه چی هر وخت یی دوطن پرستی په روحیه د مجلی سره قلمی همکاری کړیدی په درنا وی یادونه وکړو.

په درناوی
م.ا براهیم عطایی

(د ۲۹ مخ پاته)

# مارکوپو...

په دهان له پاره خاصه ژبه او کلتور درلود.

لکه چی مارکوپولو وائی ددی ښار تقریباً ټول خلک په سحر او جادو اخته وه.

مارکوپولو پسله لږ توقف څخه ددې ښار څخه هم روان شو او د (یانګ تاز) منطقی ته ورسیدې چی د (یونان) دښار سره ګی سرحد درلود او ددی لاری نه هم تیر شو څو چی ځان ګی خپل هدف (یونان) ته ورساوه۔ پولو ددی ښار دځینو ځار تونو اودنصرو دلیدو څخه هم حیران شو او ډیر خفه شیان ګی ولیدل چی تر اوسه پوری ګی نه وه لیدلی۔ ددی ښار دلیدو څخه ګی پوره خوند اخیستی دی او ډیرې ورځی ملته پاته شویدی.

په دی ښار کښی مارکوپولو دخپل جنګ هم ولیدی چی دا جنګ د برما ئیانو او مغو لانو ترمنځ منښتی وه څرنګه چی په دی جنګ کښی له یوی خوا د برما عسکرو پر مجهز وه او له بلی خوا ئی تعداد هم پنځه چنده وه سربیره پر هغه (۲۰۰۰) دانی پیلان ګی هم درلودل خو بیا هم د مغو لانو دجنګی قوماندان دا پټکار او دمغولانو دد لاوری په سبب مات شول او برما دقوبلای خان دامپراطوری جز وګڼل شو.

دا پیښه مارکوپو لو پخپله لیدلی ده چی ډیره عجیبه ورته معلومه شویده. (نور بیا)

# کندهار

دنیا په جم و جوش وینمه ښار د کندهار
ډیوه چه رونق لري بازار د کندهار
دا ځکه د اقبال له ده تو څه ده په معنی کښې
خپرېږي کندهار کښې چه آثار د کندهار
تاثیر ئې جامعه باندې هر کند د ښو اثر دی
چې اوري کندهار باندې انوار د کندهار
هر شی هلته چلا د خوند تاثیر لري په خوله کښې
ترقندو خوند کښې ژبات وینم گفتار د کندهار
فقط دېرش افغانی دي اشتراك د مجلې ئې
ځان کړي مشتر کینو کښې شمار د کندهار
که غواړې خپرو نو باندې پوه د مجلې شې
علمي او تاریخي بولې آثار د کندهار
خدمت ته ئې لازم دي چې د ده په اخلاص باندې
ها نو نه کړي لیکوال ټوله بیدار د کندهار
په متن کښې دي تل تازه شعرونه مضمونونه
خاوندې ئې نه کړې کله نصیب خوار د کندهار
توفیق د ده خدمت و چلو ونکی ته ئې غواړم
چې شي ترینه و کړي برخور دار د کندهار
دوجانه دپاودغ ده ژوندون غواړم له خدایه
هغه دي هیڅ ماچام نه کړي سهار د کندهار

د کندهار دولتی مطبعه